عزم



# مورچل

نهم کال څلورمه، پرلپسې ۸۰ یمه، جمادي الثانية ۱۴۳۶هـق، اپریل ۲۰۱۵م



## دپولادي عزم قوي جتکي ...





عزم مو متین دی

دا د ږېږې سر دی...

تهاجم فکری و فرهنگی که...

په اسلام کې د خطر مدیریت

دا تل شهید مولوي اختر محمد زاهد لنډ ژوند لیک



# مورچل

نهم کال څلورمه ګڼه پرلپسې ۸۰ یمه جمادی الثانیه ۱۴۳۶ هق اپریل ۲۰۱۵ م

علمي، سیاسي او جهادي میاشتینۍ خپرونه

د امتیاز خاوند

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر

شکـــور (شفق)

کتــنپلاوی

حــسن خېل
حـــسن زوی
زبیر مــسافر
ایــوب صـــافی
حکمت بغلانی
حافــظ سعـــید

تخنیکي چارې

دفرهنګي کمیسیون تخنیکي څانګه

مکاتباتي ادرس



پته: کابل ښار، پنځمه حوزه، دمجلې دفتر

E-mail: baakhtaraf@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحیم

سرمقاله



# دپولادي عزم قوي جټکې.....

دافغانستان اسلامي امارت د۱۴۳۲ هق کال درجب المرجب په ۵مه، چې د۱۳۹۴ل کال دثور د۴مې اود ۲۰۱۵ زکال داپریل ۲۴ مې سره سمون خوري په ټول هېواد کې دعزم په نوم د پسرلنیو عملیاتو پیل اعلان کړ.

دخبري رسنيو په استناد: دعزم په نوم دپولادي ارادې او د اوسپنيز هوډ پيغام ښونکو مبارکو عملياتو لومړی برید په یاده نیټه افغانستان کې دمیشت صلیبي اشغالګرو ځواکونو پر مرکزي هډه [بګرام هوايي ډګر] سهار پنځه بجې د تندریزې ملکوتي نارې(الله اکبر) په ویلو ترسره شو؛ په دې برید سره دهېواد ټول ولایتونه ،ولسوالۍ ،لويې لارې دامریکایي قواوو بیسونه، دګوډاګي رژیم قرار ګاوې، پوستې او پوځي هډې ددغو پسرلنيو عملياتو ځوړ ونيول، په کومو کې چې دسلګونو خارجي او داخلي عکسرو په وژل کېدو سربيره لوی شمېر يې ټپيان هم شول.

داسلامي امارت دوېندويانو [ذبيح الله مجاهد او قاري محمد يوسف] په وينا:دعزم عملياتو په لومړۍ ورځ دهېواد په لرو بر کې دامريکايي ظالمانه اشغال پرضد د دښمن په مهمو جنګي مرکزونو ، پوځي غونډونو ،دفاعي پوستو او پلي کتارونوتردې دمه ۳۲۷ لوی او واړه بریدونه ترسره شوي، چې دښمن ته یکې دسر او مال له حساب او اټکل وتلي ځاني تلفات او مالي زيانونه اوښتي.

دمعمول له مخې اسلامي امارت هر کال دپسرلي په راتلو هېواد کې دامريکا يي صليبي يرغلګرو په خلاف په نوي نوم؛ عمليات اعلانوي؛ چې په تېرو کلونو کې يې دنصرت، فتح، بدر او خالد په نومونو تاريخي عمليات دبېلګې په توګه يادولای شو، دکومو په ترځ کې چې امريکايي ښکېلاکګر د دومره سترې ماتې اوشرمند شکست سره مخ شول، چې ټول کبر او غرور يې تر خاورو لاندې شو او د اوږد مهالي جګړې لګښتونو يې اقتصادته نه جبرانيدونکي زيانونه واړول.

دسياسي اوپوځي کارپوهانو په اند: داسلامي امارت لخوا دروانو تندريزو عملياتو توپاني سيلۍ دګوډاګي رژيم دواک مانۍ لړزولې او دصليبي يرغلګرو ټولې شومې ارادې يې شنډې

اوخنسا کړي دي، بل پلو هغو تبليغاتو اوپروپاګند ته يې غابښ ماتوونکی ځواب ورکړ چې د میډیا ډنډورچیانو ویل: [ طالبان نور له جګړې ستړي شوي او داوړدې جګړې توان نلري] څرګنده شوه چې د اسلامي امارت مجاهدين يوائې په څو ولايتونو يا سيمو کې نه بلکې د هېواد په ګوټ ګوټ کې ښه منظم، هدفمن اوپراخ بريدونه تنظيمولی شي !

هو ! دپولادې عزم قوي جټکو وښوده، چې داسلامي امارت تنګياليو مجاهدينو د پخوا په پر تله نوي جنګي تجربې عصري مهارتونه او تاکتيکونه ياد او ترلاسه کړي دي،چې دهغو نه په ګټه يې هېواد کې په د ښمن دژوند کړۍ دومره تنګه کړېده چې له زيات ډاره يې د بزدلو جنرالانو او قومندانانو مورالونه پريوتي او حوصلې يې بايللي هغوی ددې لپاره چې دجګړې له روحې ډاره مصئون پاته وي خپل زيات وخت په شرابو او نشه يې توکو تېروي او کوښښ کوي چې ځانونه دجګړې له ډګره لرې وساتي،او په مقابل کې يې مجاهدين بيا ډېر لوړ مورال لري او ګام په ګام شانداري فتحې او برياوې ترلاسه کوي او دهېواد دازادۍ او استقلال په لور پخپلو پولادي ګامونو پر مخ روان دي.

په هېواد کې د روانو جهادي چارود کتونکو په وينا: دعزم په نوم عمليات په تېرو څوارلسو کلونو کې بيساري مؤثر او هدفمند عمليات دي، چې د هېواد تر ګوټ ګوټ پورې غځول شوي او پرلپسې موفق او بريالي روان دي، دهغوی په اند:که مجاهدين په راتلونکي کې دعملياتو روان بهير همداسې څپاند او روان وساتي ،د شک پرته دهېواد په لرا وبر کې به پراخه ستراتيژک اهميت لرونکې سيمې داشغالګرو او ګوډاګي رژيم له شتون پاکې او داسلامي امارت تر بيرغ او سلطې لاندې راشي. چې ښکاره بيلګې يې تازه دهېواد په بېلابېلو ولايتونو کې دګڼو ولسواليو او سيمو ازادېدل اودمجاهدينو لاس ته دهغو ور تلل دي.

لنډه داچې دعزم دعملياتو روان بريالی چټک او پراخ بهير داجوتوي که خدای کول دافغانستان راتلونکی به روښانه اوبا ثباته راتلونکی وي، او افغان ولس به ډېر ژر خپله غصب شوې خاوره دصليبي دښمن له منګولو څخه ازاده کړي، دعزم بريالي عمليات چې له ځان سره دګران هېواد دازادۍ دمعنويت ډک الهام اوپيغام ليږدوي دافغانستان او افغان ولس دفکر ،خاورې ،عقيدې او ازادۍ په دښمن يې داسماني صاعقې رالوېدو په څېر تاثير کړی دی، او ټولې شرموونکي هڅې يې ورته دناکامۍ سره مواجه کړيدي چې په برکت به يې غاصب دښمن دخپلو ظالمانه کړنو او نه ښونکو جنايتونو تراخه وڅکي او د کومو شومو شيطاني ارمانونو لپاره يې چې دوی په افغانستان ناروا يرغل کړی هم دلته د دوی سره يوځای ترخاورو لاندې شي ان شاء الله.

# نامتو مسلمان فاتحین [۳]

[لومړی برخه]

## د خراسان فاتح

## عبدالله بن عامر رضی الله عنه

## زوکړه : (4 – هـ 625 م مړینه : 59هـ 679 م)

یادونه: په تیرو ګڼو کې تاسو د کابل فاتح نامتوصحابي حضرت عبدالرحمن بن سمره رضی الله عنه پېژندنه ولوستله او دغه راز مو د بلخ او هرات فاتح نامتوتابعي حضرت احنف بن قیس رحمه الله پیژندنه هم ولوستله او دا ځل درته د ((خراسان)) د فاتح حضرت عبدالله بن عامر رضی الله عنه پیژندنه وړاندې کوو چې مخکني دواړه فاتحین د همدې ستر فاتح ترمشري لاندې یاد فتوحات ترسره کړي وو.

[۱] ـ پېژندنه

نوم يې عبدالله د عامر زوی او د کُرَیْزِ لمسی و او د حبیب کړوسی و ، پلار یې حضرت عامر رضی الله عنه هم صحابي و ، او د پیغمبرصلی الله علیه وسلم د خاله (حضرت بیضا رضی الله عنه عنها بنت عبدالمطلب ) زوي کیده. نوموړي د مکې د فتحې په ورځ ایمان را وړی و. او پخپله حضرت ابن عامر رضی الله عنه د مسلمانانو د دریم خلیفه او نامتو صحابي حضرت عثمان رضی الله عنه د ماما زوی کېده

[۲]ـ زوکړه او ستره نیکمرغي :

ابن سعد رحمه الله وايي: حضرت عبدالله رضی الله عنه له هجرت وروسته زیږیدلی و او کله چې رسول صلی الله علیه وسلم د ((قضایي عمري)) د آداینې له پاره حرم شریف ته ورغلی و ؛ نو هغه مهال پیغمبرصلی الله علیه وسلم ته را وړل شوی و. دغه مهال نوموړی دری کلن و او نبي صلی الله

علیه وسلم د خپل مبارک عادت سره سم ورته په خوله کې کجوره او خپلې مبارکې ناړې هم ورکړې وې.
حافظ ابن حجر رح لیکي : کله چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم خپلې مبارکې ناړې په خوله ورکړې ؛ نو نوموړي په کوچنیتوب کې هغه ژر ژر تیرولې نو هغه مهال رسول صلی الله علیه وسلم داسې وړاندوینه کړې وه چې :
(( هذا ابننا و هو أشبهُکم بنا و هو مُسْقًى ))[1]
ژباړه: (( دا زموږ زوی دی او موږ ته شوی دی او دی به اوبه ورکونکی (ساقي ) وي ))[2].
بیاهغسې شول چې نوموړي په لومړی ځل په عرفات کې د حاجیانو له پاره د څښاک د اوبو چاره وکړه او هغه داسې چې د حاجیانو له پاره یې د څښاک د پاکو اوبو ستر ډنډونه (حوضونه) جوړ کړل او ویالي یې هم ورته را وستلې . دغه راز به نوموړي چې کوم کوهی ویوست په هغه کې به خامخا اوبه راوتلې .[3] اودنوموړي په نامه په عرفات کې یوه ویاله مشهوره دهمده په نامه یادیدله[4]
[۳]ـ د صحابي توب ویاړ.
حضرت ابن عامر رضی الله عنه دا ستره نیکمرغي په برخه شوې وه چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم یې په خپلو سترګو لیدلی و او کله چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفات کېده نو نوموړی دیارلس کلن و ، علامه ابن حبان رح دا خبره یې ثابته کړې ده چې نوموړي پیغمبر صلی الله علیه وسلم لیدلی دی . له همدې امله نوموړی د لومړی ځل له پاره حافظ ابن منده رح په خپل کتاب دصحابه وو په کتار کې شمارلی دی اوله نوموړي وروسته امام ابن عبد البر رح ، حافظ ابن حجر رح ، امام ابن اثیر رح او امام ذهبي رحمه الله یې په کشرانو صحابه وو کې شماري او د یوه کشر صحابي په توګه یې پېژندنه کوي[5].

---

۱ تهذیب التهذیب: ۵/ ۲۳۹.
۲ سیر اعلام النبلاء: ۳/ ۲۱.
۳ سیر اعلام النبلاء: ۳/ ۱۸او د ابن عساکر د دمشق تاریخ : ۹ / ۲۲۹.
۴ تهذیب التهذیب: ۵ټوک ۲۳۹مخ.
۵ ددې مضمون په وروستنۍ لمن لیک دصحابه وو رضی الله عنهم په اړه لیکل شوي کتابونو کې دنوموړي پېژندنه وګورئ.

[۴]ـ د حدیثو روایت:

حضرت عبدالله بن عامر رضی الله عنه د حدیثو روایتونه هم بالواسطه کړي دي ؛ حافظ ابن حجر لیکي: (( که څه هم حضرت عبدالله بن عامر له پیغمبرصلی الله علیه وسلم څخه روایت کړی او دکوچنیتوب له امله یې زه گومان نه کوم چې مخامخ دې حدیث له پیغمبرصلی الله علیه څخه اوریدلی وي ))[۶]. حافظ ابن حجر رح او مام ذهبي رح هغه مشهور حدیث د نوموړي په روایاتو کې یادوي چې د محدثینو رح ترمنځ زیات شهرت هم لري او متن یې داسې دی:

(( مَنْ قُتِلَ دونَ مالِه فهو شهيدٌ. ))[۷]

ژباړه: څوک چې د خپل مال په سر و وژل شي ، هغه شهید دی.

[۵] د بصرې او خراسان د والي په توگه

په ۲۹هجري کال کې نوموړي د حضرت عثمان رضی الله عنه له لوري د بصرې او خراسان د والي په توگه وټاکل شو او تر نوموړي دمخه د بصرې والي حضرت ابوموسي اشعري رضی الله عنه و او د فارس او خراسان والي حضرت عثمان بن العاص رضی الله عنه و.

نوموړي د حضرت عثمان رضی الله عنه له لوري ددغو دواړو ولایتونو مشري وسپارل شوه ، او ډیره عجیبه خبره داده چې په دغو ستونزمنو حالاتو کې چې کله د دغو دواړو ولایتونو مشري سپارل کېدله ؛ نو دغه مهال پنځه وېشت کلن ځوان و [۸].

حضرت عبدالله بن عامر رضی الله عنه کله چې بصرې ته راغی نو حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه وویل: (( زما پرځای تاسو ته یو ښکلی او زړه سواند قریشي ځوان راغی چې پلرونه او نیکونه یې ښه خلک وو )). [۹]

---

[۶] تهذیب التهذیب: ۵ټوک ۲۳۹مخ.

[۷] د عبدالله بن عامر رضی الله عنه دغه روایت د حضرت حَنْظَلَةُ بنُ قَيْسٍ له لارې امام حاکم په المستدرک کې : ۳ / ۲۳۹ او امام بغوي ، امام طبرانی، امام أبو نعيم او اًمام ابن عساکر رحمهم الله روایت کړی دی ، وگورئ : د امام سیوطي رحمه الله کتاب جمع الجوامع حدیث شمېره : ( ۲۰۴۸ ) لومړی ټوک ۲۳۹۵۰مخ.

۸ سیر اعلام النبلاء: ۳/ ۱۸او الاعلام: ۱/ ۲۷۹ .

۹ الاصابه دریم ټوک: ۱۹مخ.

حضرت عبدالله بن عامر رضی الله عنه پرهمدې ولايت باندې د حضرت عثمان رضی الله عنه تر شهادت پورې پاتې شو ؛ خو کله چې هغه شهيد شو ؛ نو حضرت معاويه رضی الله عنه له همدې ولايت څخه ګوښه کړ .

**[۲]** په بصره کې د نوميالیو صحابه وو رضی الله عنهم مېشتول

د حضرت عثمان رضی الله عنه له شهادت وروسته چې کله په مدينه منوره کې حالات خراب شول ؛ نو صحابه وو رضی الله عنهم شام ته د تګ اراده وکړه ؛ نو هغه مهال ابن عامر رضی الله عنه مدينې منورې ته ولاړ او مشرانو صحابه وو رضی الله عنهم ته يې داسې بلنه ورکړې وه :(( تاسو د شام پر ځای بصرې ته راشئ ، هلته شناخته او د کار خلک هم شته او د دغه راز هلته زه د عوايدو ښې سرچينې هم لرم او دغه راز د بصرې اقتصاد د شام په پرتله ښه دی )) بيايي مشرانو صحابه وو رضی الله عنهم باندې نغدې روپۍ هم ووېشلې.

دنومورې دغه بلنه مشرانو صحابه وو رضی الله عنهم ومنله او د شام پر ځای بصرې ته له ده سره ولاړل. او په مشهورو صحابه وو رضی الله عنهم کې حضرت طلحه رضی الله عنه او حضرت زبير رضی الله عنه يادېږي او دوی خپلې کډې بصرې ته يوړې .

وروسته چې دبصرې حالات هم خراب شول ؛ نو دغه نامتو صحابه اړ شول چې بېرته شام ته کډې يوسي . اوپخپله حضرت ابن عامر رضی الله عنه هم شام ته کډه يو وړه. او د شام له والی حضرت معاويه رضی الله عنه سره يې ښې اړيکې وې او پرهغه دخپلې هوښيارتيا اوځيرکتيا له امله ډېر زيات ګران هم و.

**[۳]** ځانګړنې او سترې کارنامې

الله پاک نومورې ته ښکلی ځانګړتياوې ورکړې وې او ښکلی استعداد الله پاک وربانډې لورلي و و او په ځانګړي ډول د ادارې په چلولو کې يې د ښه ځواک او وړتياوو خاوند و. له همدې امله نامتو مسلمان مورخين د نومورې ستاينه کوي او ليکي چې: (( نوموړی زړور او زړه سوانده واکمن او ښه لوروونکې زړه درلود اودغه راز زيات نرم او د لويې سينې خاوند و )).[۱۰]

---

۱۰ د علامه ابن عساکر تاريخ دمشق: ۹ / ۲۲۹ وګورئ .

# تهاجم فکری و فرهنگی که جامعه اسلامی ما را تهدید می کند!!

احمدضیاء رحیمزی

ازمدتی است که در یکی از بازار های لباس فروشی شهر نو کابل متوجه شده ام که گاه یک دختر و گاه هم بیش از یک دختر، با لباس غیرمعقول و با در دست داشتن پارچه های کاغذی که روی آن رایحه های مختلف عطور بازاری ثبت شده است، هر راهروی را متوجه خود ساخته و با تقدیم نمودن پارچه کاغذ مملو از عطر، آنان را ظاهراً به خریداری عطری که در دکانی در داخل مارکیت قرار دارد، تشویق می کنند.

ظاهر امر چنان می نماید که این دو سه دختر ایستاده در کنار جاده عمومی و در مقابل مزدحم ترین مارکیت های شهرنو کابل، برای فروش عطرهای دکاکین آن مارکیت ها، به جلب و جذب خریداران می پردازند.

همچنان در ظاهر امر فکر می شود که آنها برای رونق کسب و کار و یاهم جلب مشتری به شکل حق الزحمه یا مزد معینی این کار را انجام می دهند؛ ولی با توجه به وضعیت این جاده مزدحم شهرکابل و با اندک نگریستن به عکس العمل عابرینی که از این جاده مزدحم عبور می کنند و یا به دکاکین مربوط به همین مارکیت ها برای خریداری می آیند و با شنیدن الفاظ رکیک و خنده های نیش داری که عده ای از جوانان بی بند وبار تحویل این دختران می دهند، به یقین کامل می توان گفت که هیچ دختر باحیا و مرتبط به یک خانواده باشرفی با گزاف ترین مُزدکار، هم شاید حاضر نگردد این وظیفه ثقیل را انجام دهد!!

این که یک رُخ قضیه است، از جانب دیگر از مدت هاست که می شنوم که همزمان با لشکر کشی غربی ها به کشور جنگ زده افغان، مؤسسات ونهاد های در کابل و برخی از شهر های بزرگ کشور که اکثراً پروژه های بنام دفاع از حقوق زن را پیاده می کنند، فعالیت دارند و تنها وتنها برای این کار به عده ای از دختر خانم ها مُزد می دهند تا با آخرین مادل لباس های نیمه برهنه و فضاحت بار در گوشه و اکناف شهر های مذکور به گشت و گذار بپردازند و به این ترتیب از یک سو عده ای از دخترانی را که زودتر تحت تأثیر این گونه مُد و فیشن می روند، به پوشیش چنین لباس مزخرفی تشویق نمایند و به تعداد لشکریان شیطان بیافزایند و از سوی دیگر باعث ایجاد فتنه وفساد در بین جوانان این

جامعه گردیده، در کنار لشکری از رسانه های دیداری و شنیداری، آهسته آهسته جامعه را بسوی تباهی وبربادی سوق دهند.

زیاد به عقب نمی رویم، تنها در چند ماه اخیر، گشت و گذار پا برهنه خانمی به سبک غربی و بستن آهن آلات به بدن خود توسط دختر دیگری در جاده های غرب کابل و پس از آن هم بسر کردن چادری توسط چند مرد زن نما ،بنام دفاع از دیموکراسی وحقوق زن، همراه با بازاریابان زنانه دکان های عطر فروشی شهر نوکابل، می تواند تا حد زیادی این تصویر ناخوشایند را در اذهان ما روشن سازد.

صفحات درخشان تاریخ کشور و ملت ما شاهد است که بیگانه گان در هر برهه زمان ولو هر قدر نیرومند و تادندان مسلح هم باشند ، نتوانسته اند در مقابل اراده آزادی خواهی این ملت ایستاده گی نمایند ، ولی با دریغ و درد باید گفت که این تهاجم فکری و فرهنگی این متجاوزین و دشمنان دین خداوند است که همیشه باعث شده تا صفوف نیرومند وبهم پیوسته مسلمانان در مقابل آن تاب مقاومت را از دست دهند.

با توجه به این همه مسایل است که هیچ گاهی ذهن قاصرم نمی تواند بپذیرد که این دو سه دختری که در شهرنو کابل، با در دست گرفتن پارچه های کاغذی مملو از عطر بپای خود اینجا آمده باشند و براستی هم برای رفع مشکل اقتصادی فامیل های شان، از این راه تلاش نمایند. و اگر واقعا اینها مستحق اند باید دولت در این زمینه اقدام نموده راههای آبرومندانه ای را برای کسب و کارشان برابر نماید.

به این ترتیب است که نباید خطر این تهاجم خشن فکری و فرهنگی برجامعه اسلامی مان را دست کم بگیریم و به هیچ و جه آنرا کمتر از تهاجم وسیع نظامی شمرد که هم اکنون روزانه ده ها بلکه صد ها فرزند این میهن را به قربانگاه می برد.

همچنان اگر در این رابطه منتظر اقدام حکومت بود و یا چشم امید بسوی آن دوخت ، فکر نمی کنم بازهم ثمری بدست آورد ، پس چه بهتر که قشر متدین و چیز فهم این جامعه که احساس مسؤولیت در مقابل دین خدا و مردم مسلمان خویش در وجود شان تا حال زنده است، راه وچاره یی برای این تهاجم بیاندیشند و در این راستا با یکدلی و یک پارچگی مسؤولیت دینی و ایمانی خود را ادا نمایند

# د ثور کودتا په افغانستان کې د غمیزو اصلي لامل

دادی د افغانستان د اوسني عصر د ستري غمیزې د پیل یعنې د۱۳۵۷ کال د غوایي لـه اوومې نېټې څخه پوره ۳۷ د ېرش کاله تیر شول. په دغه ورځ یو شمېر په کمونستي بلاک پورې تړلو او په لیننی فلسفه سمبال په اصطلاح افغانانو چې د خلق او پرچم په ګوندو کې سره راغونډ شوي وو د افغانستان د قانوني نظام په وړاندې بغاوت وکړ او په افغانستان کې یې د بد مرغیو لړۍ پیل کړه.

د افغانستان د وروستیو لسیزو تاریخ دغم او ویر د ډېرې پېښې په څان کې نغښتې چې راتلونکی نسل ته به ډېر دردونکي او عجیبې وي، لکه موږ چې په خپل پخواني تاریخ کې د چنګېز د یرغل او په هغه وخت کې د خپل هیواد د خلکو حالت تصور کړو نو اوسنی تاریخ مو هم له هغه څخه بدتر دی. که چېرې خپل هغه یو نیم میلیون بېګنا ه هېوادوال چې څه یې په زندانونو او څه یې په کورنو او کلیو کې شهیدان شوي، که چېرې خپل پنځه میلیونه مهاجر هیوادوال چې په زور لـه خپل ټاټوبي نـه ایستلو تـه اړشوي وو ، او پـه لکونـو خپـل معیوب او ټپي ورونـه او خویندې را په یاد کړو نو وینو چې ټول د هغو کمونستانو دیوې لوبې او کړنې د پایلې لـه کبلـه رامنځته شوي چې د غوایي د میاشتې په اوومه یې د افغانستان کرار او مخ پروده حالت تـه د بدلون تر څنګ د غمونو تغر پرهېواد خور کړ.

که چېرې د روسانو یرغل ته نظروا چوو چې اووه کاله یې زموږ پرخلکو چپه مېچنې وچلولې نو هغه هم د همدغو د ثور د اوومی د عاملینو د کړنو اوبلنو پایله وه چې زموږ پرخلکو یې تحمیل کړه او که چېرې هم د خپلو خلکو په تېره بیا د کابل د خلکو ماتمونه د مجاهدینو له بری نه وروسته راپه یاد کړو نو اصلی سرچینه یی بیا هم په همغه کمونستانو او د غوایی داوومې نېټې په عاملینو کې وینو چې د پردی عقیدې په خپلولو سره یې خپله لړګته زموږ د خلکو او هېواد په غټ تاوان کې لیدله.

ځينې وخت د غوايې د اوومې نېټې اصلي عاملين يعنې د خلق او پرچم ګوند غړي دافغانستان غمېزې پر مجاهدينو يا عام اولس وراچوي او وايې چې موږ دې وطن ته سوله او پرمختګ راوړ خو نورو پرې نه ښودو ، کله هم دخپل برأت لپاره وايې كه موږ يوازې روس راوستلی ؤ نو مجاهدينو دادی ۴۲ ملکونه راوستل. كه حقيقت ته ځير شو نو د وروستيو ټولو پېښو عاملين همدوی دی او دا شپږ څلويښت ملکونه هم ددوی د ناوړه کړو وړو له لاسه راغلي.

کله چې روسان له افغانستان نه ووتل او خلق او پرچم يې يوائې پرېښودل او په خپلو مادي مرستو سره يې ددوی ملاتړ ته دوام ورکړ نو دخلکو د پاڅون او جهاد له امله د دوی ګوډاګي خلقيان او پرچميان نور ټينګېدلای نه شوای نو همغه وو چې دوی ته ور وښودل شول چې د پلارو طنه ملي جبهه جوړه کړي ، لويه جرګه راوغواړي ، دقبايلو جرګه دې جوړه کړي ، يو شمېرزندانيان دې خوشې کړي اودملي مصالحې پروسه دې اعلان کړي ...چې يوه کړنه يې هم بريالی نه شوه اودافغانستان په دولتی واک کې يې دكمونستی ګوند دغړو دګډون ادامه نه تضمينوله او ماتې يې حتمی ګڼل کېده، نو هغهؤ چې دافغانستان دخلک دموکراتيک ګوند غړو داخل دخپلو بهرنيو واکدارانو په هدايت ځانونه په قومي رنګ ورنګول او دمجاهدينو له تنظيمونو سره يې دقومی عصبيت له ارخه اړيکې ټينګې کړې او په دې لړ کې بهرنيانو چی په دې وخت کې لويديزو او ختيزو ښکېلاګرو دمجاهدينو د ځواک او پوځي تجربې نه کلک په ډار شوي وو نو په خپله اشاره يې له قومی نزاکتونو نه په ګټه اخستنه افغانی کمونست پلوه ډلې د مجاهيدينو په تنظيمونو کې ورګډې کړې .

ددغه ګوند دپرچم ډله يې دکارمل په مشری له تاجکو مجاهدينو سره دګلم جم ډله يې د ازبکو مجاهدينو سره ، دکشتمند او ورپورې اړوند پوځی مليشه ډله يې دهزاره وو له تنظيمونو سره او دخلق او جنرال رفيع او جبار ډله يې دپښتنو ميشتو سيمو له مجاهيدينو سره يوځای کړل ، خو دوی له مخکې دستور په دې اړوند درلود او دنړيوالو اړونده جاسوسی او سياسی شبکو له لاری ورته په دې اړوند دستور ورکړل شوی ؤ. په دې ګډېدو سره دوی دوه ګټې وکړې يو داچې مجاهدين بې بدنامه کړل بل بې ځان له هغې محاكمې وژغوره چې کيدای شوای ورسره مخ شوي وای.

دوی دمجاهدينو له ډلو سره په ګډېدو قومي او تنظيمي جګړو ته لمن ووهله خپله وسله او مهمات يې هم دډلو په واک کې ورکړل او مجاهدين يې چې پخوايې نه دولتي تجربه درلوده او نه هم په سياسي او قومي لوبو کې روږدي وو سره وجنګول.

جګړې هم په داسې پلاني توګه سره ترتيب شوې وې چې حتمی ګڼل کېدې، هغه داسې چې مجاهيدين به يا له واک نه تېرېدل او خپل پخواني زيارونه به يې عبث تلل يابه هم په خپل مېنځ

کې سره په جګړه اخته کېدل چې له بده مرغه دوهمه نخشه یې بریالی شوه او په دې ډول کمونستان له خپلې سترې ماتې وروسته بیاهم له مجاهدینو او دافغانستان له خلکو سره په دې توګه وجنګېدل او هغوې یې نورهم دغم په تغر کېنول خو داځل ددوی جګړه بریالی وه نه یوازې یې مجاهدین بدنامه کړل بلکې دخپل خلاصون زمینه یې هم برابره کړه.

دوی په دې هم بسنه ونه کړه یو شمېر ډلې یې له نږدې ګاونډي هیواد سره په استخباراتي کارکې ورګډې شوې او دمجاهدینو دځای ناستي نظام لپاره یې کار وکړ.

خو کله چې دوی افشأ شول او نظام ددوی په خوښه کارونه ونه کړل نو په نورو دسیسو یې لاس پورې کړ چې دټولو ته روښانه دي او بیان یې خبره ډېره اوږدوي.

لنډه داچې که دافغانستان دخلک دموکراتیک ګوند په افغانستان کې کودتاه نه وای کړې، د افغانستان قانوني جمهور ریس یې نه وای شهید کړی، یا وروسته له واک نه یې خپله کمونستی مفکوره پرخلکو نه وای تپلې او دخلکو په وژلو، زنداني کولو او ځورولو یې لاس نه وای پورې کړی نو کله به هم دغه دوروستیو کلونو غمیزې دافغانستان پرخلکو نه وای راغلې. ترټولو بدترلا دا چې اوس هم لایو شمېر له دغو افرادو اوکړیو څخه داسې مېراث خواره پاتې دي چې له خپلو کړنو او مفکورې نه دي پښېمانه اوس هم له هغو اړیکو اوتجربو څخه چې لري یې غواړي دافغانستان دغمیزو لړۍ اوږده کړي او دخپلو ځانګړو موخو لپاره چې اوس یې هم دحامیانو اوهم دګټو رنګ بدل شوي ځان ورسوي.

د ثور کودتاه عاملینو او پلویانو ته یې سره له دې چې ښه پوره سزا ورکړ شوې هم ده او ترټولو غټه یې دملت نفرین دی چې ورسره مخامخ دي او ددوي وجدانونه به دژوند ترپایه وزوروي خو شکر چې موږ مسلمان هم یو او پردې باور یو چې دهرې کړنې سزا به راکول کیږي او داسې ورځ راتلونکې ده چې د هرڅه محاسبه به کیږي، په هغه ځای کې به بیا جعل او تزویر نه چلیږي حیلې به نه چلیږي اوهم که اوس دوی په دنیا کې هرڅومره ځان سپېڅلي وبولي او دخپل بام واوری په نورو وروا چوي خو د تاریخ پاڼې به دروغ ونه مني او حقیقت به ضرور څرګندیږي.

په دې هیله چې نور دافغان ولس وګړي دپردیو عقیدې په خپلو لو سره پرځان او زموږ دهېواد په خلکو هغه څه ونه تپي چې دوی ته دمختوروالی او ابدی بدنامی او عذاب او نوروته دستونزو او غمونولامل شي

# دادپېتي سر دی

میوند سادات

تېره اونۍ اسلامي امارت اعلان وکړ چي دجمعې له ورځي به په ټول هیواد کي دعزم په نوم پسرلني عملیات پیلوي، د طالبانو دې اعلان ته دکابل اداري د محض تبلیغاتو نوم ورکړ، خو د چارو شنونکي په دې باور وو، چي طالبان به د پخوا په شان دخپل معمول سره سم دعزم عملیاتو ته دعمل جامه ور اغوندي

دجمعې ورځ شوه، دهیواد د ختیځ او لویدیځ، شمال او جنوب له مختلفو ولایتونو څخه راپورونه خپاره شول، چي طالبانو دیرغلګرو ځواکونو پر اډو، دولسوالیو پر مرکزونو، داردو، پولیسو او اربکیانو په بیسونو، پوستو او ګزمو پراخ بریدونه ترسره کړې چي په پایله کي یې ډیري سیمي ولکه کړې، شوبلي، رینجرونه، توپونه، او ګڼ شمېر سپکي وسلې او مهمات یې غنیمت کړي دي.

تر اوسه چي دعزم عملیاتو شپږ ورځي تېري شوي مجاهدینو په کندوز، بغلان، بدخشان، سرپل، فاریاب، فراه، هلمند، زابل، غزني، کاپیسا، کونړ، ننګرهار، ارزګان ،بلخ او..... ولایتونو کي پراخي سیمي فتح کړې، بیساري

بریاوي یې ترلاسه کړې او دښمن یې دانتهایې مایوسۍ او شرمندګۍ سره مخ کړی دی.

**کندوز:**

یو له هغو ولایتونو څخه چي دښمن ډیر پکي ځپل شوی دکندوز مجاهد پروره خاوره ده، له تېرو شپږ ورځو راهیسي دکندوز ولایت په مرکز او شپږو ولسوالیو کي دمجاهدینو بریدونه په عالي مورال او ټینګ عزم سره ادامه لري، دکندوز د شپږ ورځني جګړې د موثقو راپورونو په اساس په دغه جګړه کي داسلامي امارت قهرمانو مجاهدینو دکندوز مرکز ته څېرمه دګورتېپې او تیلاوکه سیمي چي خورا ستراتیژیک اهمیت لري په بشپړه توګه نیولي او دمرکز په دوه کلیو مترۍ کي

مجاهدین قرار لري، او ددغه ولایت په شپږو ولسوالیو کي یې ۲۵ پوستې نیولي او ۴۱ کلي یې داربکي ملېشو له وجود څخه پاک کړي دي

په دغه جګړه کي دکابل اداري ۲۹۵ تنه داردو، پولیسو او اربکیانو کرایي جګړه ماران وژل شوي، ۱۴۲ تنه ژوبل شوي او ۵۸ تنه ژوندي نیول شوي دي، همدا راز په دې جګړه کي ددښمن ۲۰ عرادې ټانګونه او ۱۳ عرادې رینجر ویجاړ شوي دي.

مجاهدینو ته په یاده شوې جګړه کي د ډارن دښمن ۱۲ عرادې شوبلې او رینجر او تر ۱۰۰ میله زیاته وسله د غنیمت په ډول په لاس ورغلې ده.

همدا رنګه په دغه جګړه کي ۹ تنه مجاهدین شهیدان شوي او ۱۰ تنه ژوبل شوي دي.

**فراه :**

د فراه ولایت په بالا بلوک ولسوالۍ کي دعزم عملیاتو له پیل سره دیادي شوي ولسوالۍ په ودانۍ او دفاعي پوستو، ګراني، ګنج اباداو شیوان سیموکي دمجاهدینو او اجیر دښمن ترمنځ نښتې رواني وې، چي بالاخره تېره شپه له سیمي څخه ددښمن په تېښته دغه جګړه پای ته ورسیده، دبالا بلوک په جګړه کي دکابل اداري دنظم عامه، اردو او کوماندویې باند ۹۷ تنه مزدور عسکر مړه او ژوبل شوي، ګڼ شمېر نقلیه وسایط یې تخریب شوي او په لسهاوو میله سپکه وسله مجاهدینو غنیمت کړې ده. همدا راز په ګلستان او پشترود ولسوالیو کي هم مجاهدینو ددښمن ګڼې پوستې فتح کړې او دښمن یې دځاني او مالي زیانونو سره مواجه کړی دی.

**فارياب :**

دفارياب ولایت دچهلګزي ولسوالۍ په کاریز سیمه کي د دښمن سره د څلور ورځنۍ جګړې په جریان کي دښمن له درنو تلفاتو سره مخ شو، ۱۴ تنه عسکر یې مړه او ټپیان شول او دقوماندان عبیدالله په مشري ۱۲ تنه عسکر دمجاهدینو سره یوځای شول، د جګړې په ترخ کي مجاهدینو ۴ پوستې نیولي او یاده شوې سیمه یې فتح کړې ده، دلته هم جګړه له سیمي څخه ددښمن په تیښته پای ته ورسیده.

**بدخشان :**

دبدخشان ولایت دجرم ولسوالۍ په فرغامنج سیمه کي له څو روځو راهیسي د ښمن د له لاسه وتلو سیمو دبیرته نیولو په موخه پراخ تعرضي برید ونه پیل کړي وو، په دې جګړه کي دځایې عسکرو ترڅنګ له کابل او نورو ولایتونو څخه راغلي کومکي عسکر هم شریک وو، دښمن دلته هم دهیواد دنورو سیمو په څېر له ډېرو ځاني تلفاتو سره مخ شو، دوې چورلکې یې نسکوري شوې او مختلف وسایل یې داور خوراک شول، دوی د شوبلو، زغره والو ګاډو، توپچي قواوو او هوایي ځواک په مټ دومره غره وو چي دجرم دبیا نیولو خیالونه یې په سر کي ګرځیدل، خو

سر سپارلو مجاهدینو دالله تعالی په نصرت ددښمن مجهز لښکر پر شا وځغلاوه او د دشمن هیلي او ارمانونه یې له خاورو سره خاوري کړل.

**هلمند:**

دهلمند مرکز لښکرګاه اړوند په خوشکاوه اود ګریشک په نهر سراج کې مجاهدینو ددښمن ۴ تعرضي برریدونه پر شا تمبولي، ۵ شوبلي یې ویجاړي کړي او دښمن ته یې دسر پراخ زیان رسولی دی، وروسته دښمن پر سیمه هاوانونه اورولي چې له امله یې ۲ تنه ولسي وګړي دښځو اوماشومانو په شمول شهیدان شوي دي.په موسي کلا ولسوالۍ کې مجاهدینو اجیر دښمن ته سخته ضربه ورکړې اود ولسوالۍ مقر ته نژدې له خورا ستراتیژیکي نقطې څخه یې د کابل اداري کرایې عسکر شړلي دي.همدا رنګه سر سامه دښمن دګریشک ولسوالۍ په نورو سیمو کې هم عملیات اعلان کړي خو په عمل کې هیڅ لاسته راوړنه نه لري.

**بغلان :**

دبغلان ولایت په مرکزي بغلان ولسوالۍ کې مجاهدینو دګوډاګیو عسکرو سره دنښتو په پایله کې دیادي شوي ولسوالۍ اړوند ۷ کلي فتح کړي، ۱۳ تنه عسکر په دغه جګړه کې وژل شوي او ۸ تنه ژوبل شوي دي.

**غزني :**

دغزني ولایت په دیک ، شلګر او مقر ولسوالیو کې مجاهدینو دښمن ته سخت ټکانونه ورکړي، تعرضي حملې یې پر شا تمبول شوي اوله سیمي په تیښته وتلي دي، له یادو شوو سیمو څخه یوازي دمقر په ګدایخېلو ،ستار خېل او انعام خېل سیمو کې ددښمن ۴ عرادې ټانګونه ویجاړ شوي او پکې سپرو عسکرو ته یې غوښنه مرګ ژوبله اوښتې ده.

**ارزګان :**

دارزګان ولایت په بیلابیلو ولسوالیو کې دمجاهدینو په بریدونو کې د مزدور دښمن ګڼ قوماندان او افراد له منځه تللي دي، چې له دې جملې څخه یو هم دارزګان ولایت سرپرست امنیه قوماندان ؤ چې ددوو تنو نفوذي مجاهدینو له خوا په خپله سزا ورسید.

**ننګرهار :**

ننګرهار هم یو له هغو ولایتونو څخه ؤ چې په تېرو څو ورځو کې پکې دښمن ته دسر او مال درانه زیانونه واوښتل، ددې ولایت په بیلابیلو ولسوالیو کې دښمن تر اور لاندي ونیول شو ، دمجاهدینو کارنده ګوزارونو پوستې پرې تخلیه کړې،او د ښمن د یو عالم بزدلیو او مایوسیو سره خپلو قرارګاوو ته پناه یو وړل.

**زابل :**

دزابل ولایت په ارغنداب، شاجوي او دمرکز قلات اړوند سیموکي ددښمن پرله

پسې حملې دمجاهدینو دسخت مقاومت له امله شنډې شوې، کرایې عسکرو نه یوازې داچې په ذکر شوو سیمو کې پرمختګ نه دی کړی، بلکې له خونړیو پایلو سره مخ شوي دي، دلته دکندهار دامنیه قوماندان رازق مرستیال( اسد ) دګڼو جنایتکارو ملګرو سره مغروره ککرۍ وخوړه او هیوادوال یې له شره خلاص شول.

**کونړ**:

دکونړ ولایت په مختلفو ولسوالیو کې داتلو مجاهدینو دکلک عزم له امله دښمن له سختوننګونو سره مخ شو، بیسونه یې تر شدیدو حملو لاندې ونیول شول، پوستې یې پرېښودې، ګزمې یې تر اور لاندې ونیول شوې، شوبلې یې وسوځیدې، رینجر یې ایرې شول او ګڼو اجیرو عسکرو دامریکایې ګټو په خاطر خپل سرونه بایلول.

دعزم عملیاتو اعلان او پریکنده پیل نړیوالو ته داسلامي امارت دقول او عمل د توافق هغه روښانه رښتونی مظهر دی چې دښمن یې په خپل پروپاګند سره نه شي پیکه کولای، دعزم عملیاتو په وړاندې دښمن تبلیغاتو ته خورا زور ورکړی، کله وایې له شمالي وزیرستان او نورو بهرنیو وطنونو څخه جنګیالي راغلي او جګړې یې شروع کړې، خو ولس دکابل ادارې په قصرونو کې دمحاصره شوو ستهو په ښکرورو درواغو پورې خاندي، ځکه داڅرنګه بهرني جنګیالي دي چې دهیواد په لراو بر کې یې داسې جګړې پیل کړې، چې دوی یې داشغالګرو په هوایې او مځکني ملاتړ او داردو، پولیسو او اربکي ملېشو په سلهاوو زره جګړه مارو او لوېمارو سره نه شي قابو کولای.

دمجاهدینو پرمختګونو دښمن د خورا زیات رواني او فکري کشمکش سره مواجه کړی دی، دفاع وزارت او ولایتي منسوبین یې دیوې پیښې په اړه ضد ونقیض دعواوې کوي، دښمن مرکزي واحده رهبري نه لري، دښمن دمجاهدینو سره دمخامخ جګړې پر ځای میډیایي افواهاتو ته ترجیح ورکړې، دوی خپلو مورال بایللو عسکرو ته په درواغو ډاډ ورکوي چې فلان فلان سیمې یې بیرته نیولي دومره او هومره جنګیالي یې وژلي او نیولي، خو دواقعیت په میدان کې یې ټولې ادعاګانې سوچه درواغ دي.

داسلامي امارت سر سپارلو مجاهدینو د عزم عملیاتو په پیلیدو سره یرغلګر او داخلي دښمن ته یو وار بیاثابته کړه، چې دافغانستان په پاکه خاوره کې دارام اوسیدلو چانس نه لري، دوی که خپلې ناروا جګړې ته هر پرتوګ وراغوندي، خو افغان مجاهد ولس پوهیږي چې همدا نیواکګر او داخلي ګوداګیان یې ددین ، وطن، ناموس، ارزښتونو او شتمنیو قسم خوړلي دښمنان دي.

د کابل ادارې کرایې جګړه مار اوس هم چانس لري چې داسلام او هیواد له دښمنې

ځخــه لاس واخلــي او د اســلامي امــارت د مجاهـدينو سـره يوځـای شـي، امـارت دعـزم عمليـاتو پـه اعلاميـه کـي دمـزدور رژيـم لـوړ پوړو او ټيټ پوړو منسوبينو ته ټېر وهلی چي دولـس سـره يوځـای کيـده يې دارام او عـزتمن ژوند تضمين کولای شي.

د کابل اداري منسوبينو ! که تاسي نور هم دامريکـايي ګټـو لپـاره دمجاهدينو سـره جګـړه کوئ او دغلامی ژوند ته پر ازاد ژوند تـرجيح ورکــوئ ، نودقهرمــانو مجاهــدينوپولادي ګوزارونو ته تېنګ شئ، داچي دعزم عملياتو پيل مو چيغي پورته کړې، څه فکر کوئ ددې مبارکو عملياتوجريان او پای به مود متبوع رژيم خونه دروړانه کړي ؟.

هو !

دا دپټي سر دی، پټی وروسته سورور دی

## که د شکر له اوچتوالی کړېږئ؛ دغه خواړه مه هيروئ

په نړۍ کې اوس شکر د يوې عامې ناروغۍ په توګه پېژندل کيږي او پـه ميليونونـه کسـان پـه دغـه ناروغۍ اخته دي.

په دې وروستيو کې امريکايي روغتيايي څېړونکو ثابته کړې چې ډېر داسې طبيعي خواړه شتون لري کوم چې کولی شي پـه وينـه کې د شکر اندازه کنټرول کړي د شکر ناروغان کولی شي پـه لږ لګښت او طبيعي طريقې سره خپل شکر کنټرول کړي.

په امريکا کې شوې دغې څېړنې پر بنسټ د شکر ناروغـان کـولی شي خپـل ورځنـۍ خـواړه کې لږ مثبت بدلون راوستلو سره خپل د وينې شکر کنټرول کړي. که غواړئ د خوړو په انتخاب کې ازاد او سئ او روغ ژوند ولرئ نو لاندې خواړه خپل ورځنۍ ژوند کې مه هيروئ.

۱ -فـايبر (Fiber) لروونکي خـواړه: دغـه خـواړه پـه وينه کې د ګلوکوز جذبولو عمليه بطي کوي. په ورځنـۍ ډول د سابه او ناک استعمال د شکر ناروغانو لپـاره ډېر زيات ګټور دی. فـايبر يو ډول ګټور مواد دی چې ډېرو نـاروغيو لپـاره غـوره او طبيعـي درمـل ګڼل کيږي او پـه ځيني خواړه لکه جوار، سـپينه لوبيـا ، تـوره لوبيـا ، سره لوبيا ، نخود ، اووکادو (Avocado) نومې ميوه، مټر او ځينو نورو کې په زياته اندازه شتون لري.

۲ -کروميم (Chromium) نـومې فلزي عنصـر: دغـه عنصر په ځيني خواړه لکه باراکولي، پنير (پوڅه) ، شنه لوبيا يا مټر کې په زياته اندازه پيدا کيږي. د دغو خوړو استعمال په وينه کې د ګلوکوز اندازه نورماله ساتي. پـه پورتنيو خوړو کې باراکولي د کروميم تر ټولو غـوره او ستره منبع ده.

۳ -کبـان: پـه کبـانو کې شته اوميګا ۳ (Omega-۳) نومې مواد په وينه کې د ګلوکوز اثر لـه منځـه وړي او پـه دې ډول د وينې د شکر اندازه نورماله ساتلو کې مرسته کوي.

# دلیکنې او لیکوالۍ علمي آرونه او معیارونه

دوهمه برخه

لیکوال: شمس ... منصور

## دمحاوراتو استعمال

محاوره په لغت کې خبرو ته وايي، او په اصطلاح کې دهغو خاصو خبرونوم دی، چې الفاظ یې په حقیقي معنی کې نه وي کاریدلي، دمثال په توګه: ډوډۍ خوړل - قسم خوړل واخلئ! دلته په لومړۍ جمله کې د خوړو لفظ په حقیقي معنی کې استعمال شوی، او په دوهمه جمله کې نه دی استعمال! دا دوهمه جمله محاوره ده!

دمحاورې په اړه داخبره په یاد لرل پکار ده، چې په الفاظو کې تغیر او بدلون نشي راتلای، کنه بیا به محاوره راوړل پرځای نه وي! لکه دفارسي مشهوره محاوره [آب ودانه...] دا - د متکلم ،مخاطب، غایب، ماضي، حال اومستقبل په هره صیغه کې کارول کېدای شي، خو په الفاظو کې یې تغیر نشي راتلی، دآب ودانه په ځای -آب وچاره نشي ویلی... بلکې الفاظ یې چې څنګه دي، هم هغسې به راوړل کېږي، دپښتو څو مشهورې محاورې دادي:

...اوړو کې دمالګې اومره... یعنې ډېر لږ... لکه : په افغانستان کې دهندوانو شمېر په اوړو کې دمالګې اومره ندی...

اسمان سره خبرې... یعنې لویې اوغرور کول... دیو چا دکبر او غرور پرمهال ویل کېږي، چې فلانی...خو د اسمان سره خبرې کوي...

دستر ګوتور... یعنې ډېر ګران... اجمل دهر چا دستر ګوتوردی، یعنې هرسړی ورسره مینه کوي...

نن بازار ر سوړدی... یعنې بازار دومره خراب دی چې داخستلو پوښتنه څوک نکوي...

زړه مې مات دی... مایوس اونهېلی یم..یا : زړه چې مات شي بیا کله جوړېږي...

ضرب الامثال( متلونه)

هر کله چې یوه واقعه، په بیا بیا تجربه شي او له مشاهدې تېره شي، دهغو تجربو او لیدنو لنډېز وړاندې کولو لپاره څو الفاظ او جملې کارول کېږي، بیا هغه الفاظ یا جملې چې کله تراوږدې مودې پر خاصو ځایونو کې کارول دود شي او دوخت په تېریدو دخپلو لفظي معنا ګانو پر ځای بله معنی غوره کړي، ورته ضرب المثل (متل) ویلی کېږي، ضرب المثل عموماً دخپلې خبرې دقوت او مؤثره ګرځولو لپاره راوړل کېږي.

متلونه په عامه توګه زېږې او په کې دپېریو، پوهه، عقل اودبشریت تجربې اومشاهدې ګډې وي، دځینو متلونو شالید یوه نه یوه داسې کیسه وي، چې هغه له خلکونه هېره وي.

دشیخ سعدی دکتاب ډېرې جملې او مسرۍ ضرب الامثال ګرځیدلي، دنورو پخوانیو متلونو جوړونکي مونږ نه پیژنو، چې چا جوړ کړي دي؟ لیکن هرڅوک که هغه عام خلک دي او یا خواص ټول یې استعمالوي، خوپه دې نه پوهېږي چې فلانی، متل یا مسرۍ دکوم شاعر ده؟

د ضرب المثل اومحاورې توپیر:

دمحاورې او ضرب المثل په منځ کې توپیر دادی، چې کله محاوره دکلام نه جز شي په هغه کې جذب شي !دهغې پرته کلام ناقص او نیمګړی وي، او ضرب المثل داسې ندی، که هغه د جملې څخه حذف شي ، بیا هم کلام پوره( تام) وي او نیمګړی نه وي.

دویم توپیر دادی: چې الفاظ په دواړو کې نه بدلېږي! البته د محاورې په صیغه کې بدلون کېدای شي، او د ضرب المثل په صیغه کې تغیر یابدلون نشي راتلای د پښتو ځینې متلونه داسې دي

— دلستوني مار – دپټ دښمن لپاره راوړل کېږي.

— بل ته مسلې کوه خپله پرې حملې کوه! – دبې عمله واعظ لپاره ویل شوی.

— څه چې کرې هغه به رېبې – دنیکیو بدله نیکه او دبدو. بده وې.

— وړه خوله اوغټې خبرې – د خپل حیثیت نه جګې دعوې کول.

— دڅراغ لاندې تیاره وي – نوروته ګټه رسول او خپل ځان محرومول –

— په حرکت کې برکت وي – کارکول ګټه لري

— مدعی سست ګواه چالاک – دمعاملې څښتن غلی او پر ځای یې بل غوړېږي

— په ضرورت کې خره ته هم ابا وایي! یعنې دمجبورۍ پرمهال به معمولي غونډې سړي ته هم زارۍ اومنتونه کوي.

استعارات:

استعارې لغوي معنی ده،پور کول؛ دبیان علم په اصطلاح کې کله یو لفظ په مجازي معنی کې استعمال شي او دحقیقي او مجازي معنی ترمنځ تشیه وي؛دیته استعاره ویل کېږي، مثلاً :.سپوږمۍ۔نه ماشوم مرادول،چاته په . زمری. ویلو هغه زړور ښودل!یا کوم سخي سړي ته په. حاتم .غږ کول!په دې مثالونو کې .سپوږمۍ-زمری .حاتم. درېواړه استعارې دي.

داستعارې ارکان:

استعاره درې ارکان لري .مستعارله . مستعارمنه . وجه دجمع .

مستعارله .هغه شخص یاڅېز چې ورته لفظ مستعار اخستل شوی وي.په تشبیه کې دیته مشبه ویل کېږي.

مستعارمنه. هغه شخص یا څېز چې مستعاراخستل شوی؛ په تشبیه کې دیته مشبه به ویلی کېږي، مستعارله او مستعارمنه داستعارې طرفین هم بلل کېږي.

وجه دجمع. هغه مشترک صفت چې په مستعارله او مستعارمنه دواړو کې مندل کېږي؛ په تشبیه کې دیته دتشبیه وجه ویلی کېږي.

ځېرنه:

په استعاره کې داستعارې له درې ګونو ارکانو څخه یواځې مستعارمنه یعنې مشبه به. ذکر کېږي؛ پاتـه دوه نور يې نه ذکر کېږي، بلکې هغه دواړه به محذوف وي.

په تشبیه او استعاره کې توپیر:

په تشبیه کې مشبه اومشبه به دواړه راوړل کېږي؛ او پخپلو حقیقي معانیو کې استعمالېږي؛ چې د تشبیه حروفو له لارې يې اظهار کېږي، هر چې استعاره ده، پکې یواځې مستعارمنه یعنې مشبه به راوړل کېږي؛ او دتشبیه کوم حرف پکې نه راوړل کېږي؛ مثلاً: یو شاعر که په شعر کې دخپل محبوب ښکلا اودهغه د ښکلا تازه ګي د ګلاب دګل سره تشبیه کړې، یعنې مشبه او مشبه به دواړه پخپلو حقیقي معانیو کې راوړي، او دتشبیه لپاره دتشبیه حروف و کاروي. دیته تشبیه ویل کېږي.

او که شاعر دنورې ښکلا یا حسن پیداکولو لپاره دمجاز لاره ونیسي، هغه خپل ګران محبوب دګلاب دګل په څېر ګڼلو پرځای فی الواقع هغه ګلاب وبولي!! یا په بله وینادمحبوب دوجود لپاره ګلاب پوروي! او مجازي مفهوم يې راوړي، دیته استعاره ویل کېږي.

او دګلاب حقیقي مفهوم چې ښکلی ګل دی! او چې شاعر يې دخپل محبوب لپاره استعمال کړې، داد ګلاب مجازي مفهوم دی، او د دواړو ترمنځ دتشبیه تعلق شته دی هغه داچې ښایست یا ښکلا د دواړو ترمنځ مشترکه ده؛ همدیته استعاره وایي، یعنې په استعاره کې نه یواځې محبوب دګلاب سره مشابه ګڼلی شي! بلکې بعینه ګلاب ګڼلی شي! یعنې مشبه به عین دمشبه ګڼل کېږي، اومشبه به دمشبه لپاره مستعار اخلي. له دې وجې په استعاره کې دمشبه او دتشبیه حرف راوړوته ضرورت نه وي، دمحبوب (مشبه) دذکر پرته ګل (مشبه به) محبوب (مشبه) وګرځول شي.

دتشبیه او استعارې دتوپیر لنډېز:

دتشبیه او استعارې ترمنځ توپیر په لاندې پنځو شیانو سره ښه پیژندل کېږي:

تشبیه:

۱.مشبه اومشبه به دواړه ذکر وي

۲.دتشبیه حروفو له لارې تشبیه ورکول کېږي

۳.دتشبیه ارکان څلوردي

۴.تشبیه دبیان علم ابتدائي شکل ده

۵.دتشبیه اساس حقیقت دی

استعاره:

۱.استعاره کې یواځې مشبه به راوړل کېږي

۲. دتشبیه حروف نه؛ مخامخ مشبه به مشبه ګرځول کېږي

۳.داستعارې ارکان درې دي

۴.استعاره دبیان علم بلیغ صورت دی

۵. داستعارې اساس خیالي او مجازي انځور وي

په لنډډول داستعارې او تشبیه توپیر:

په تشبیه کې یوشاعر اوښکې مرغلرې یا ستوري ګرځوي؛ او په استعاره کې شاعر اوښکه بعینه مرغلره؛ یا ستوري ګرځوي....!

سابقې او لاحقې

ځینــې وخــت د یــو نــوم یــا صــفت ســره دسرینو (سابقو) ادواتو پـه یوځـای کیـدو د ځانلـه کلمې بڼـه غـوره کـوي، اونـوې معنی افـاده کـوي، مـثلا : دادب نـه [بې ادب] جوړول، دپوه نه [ناپوی] جوړول په اول کې [بې] او پـه وروستي کې [نا] دسریني ادات دي، پـه پښـتو کې هغـه ادات دي، چې دمدخول پـه سر کې راځي ورتـه سریني یا سابقې ویل کیږي لکه (پـه، پر، د، تر، تر، لـه، نا، بې)

لاحقې (روستاړی)

پـه نوم یا صفت کې د مدخول وروسته دځینـو ادواتـو پـه یوځا کیدو د ځانلـه جملې بڼـه غـوره کـوي، ورتـه لاحقې (روستاړی) ویلی کیږي، هغه دادي (لـه، تـه، لره، نه، څخـه، لپاره، باندې، پورې، پشان، په څېر، ځیر، پسې، راسې) هـم هغه مرکب صفتونه چې د (من، وال، بخمن، مـار، ور، جـن، ن، ناک) اداتو پـه یوځای کېدو سره جوړشوي لکـه : دولت مـن سړی، میونـدوال هلـک، تـوربخن کمـیس، ډوډی مـار سړی، نمناک ځـای، ډارن سړی، درواغجـن سړی، خیټـور هلک .

غـرض دای چې دیـوې ژبې لیکـوال بایـد دهغـه ژبې دلیکـدود سـره سـم دجملـو او کلمـو جوړولـو لپـاره سـابقې او لاحقې وکاروي، دژبپوهانو پـه وینا : دا دواړه پیژندل دهـرې ژبې دپیژنـدنې یـوه لویـه برخـه جـوړوي ! ځکـه دهمـدې پـه مرسـته مـونږ لسګونه نـوي الفـاظ او نـوې کلمـې جـوړولی شو، دکومو لـه املـه چې پـه یـوه ژبـه کې وسعت او پراختیـا راتـلای شي، پـه پښـتو ژبـه کـې دسـابقو او لاحقـو د ادواتـو پیژندل دپښـتو پیژندنې لـه اولي ضروریاتو څخـه دي، پـه وجـه یـې د الفـاظو پـه معـانیو کـې سـتر بدلونونـه رامنځتـه کېږي، لیکـوال بـه دغـو ټولو بدلونوتـه ځیـروي، او وربانـدې ژور نظربه لري او دموقع سره سم به یې استعمالوي.

تذکیر او تانیث :

بل په هره ژبه کې دمعیاري لیکوالۍ لپاره اړینه ده، چې لیکوال بـه پـه هغـه ژبـه کې دمـذکر او مونث تـرمنځ پـه توپیر کولو پوهیږي ، څنګه چې دالفاظو په ویلو (تلفظ) کې غلطې د یـوه نـه ښـونکې زیـان پـه معنـی ده، پـه ورتـه توګـه دمـذکر پـه ځـای مونث راوړل او دمونـث پـه ځـای د مـذکر راوړل نـه ښـونکی عیـب دی، نوپـه دې وجـه دهـر لیکـوال او دقلم څښتن لپاره دتـذکیر او تانیـث فـرق پیژنـدل لازمي او ضروري امر دی، ځکه پـه یـوه لیکنـه کې حسن او ښکلا هغـه مهال منځتـه راځـي، چې کلـه هغـه لـه داسې سترو تیروتنـو څخـه پاکـه وي، ایلـه دهغـې لیکنـې پـه جملـو کـې رواني او سلاست راځي.

نو په هره ژبه کې په اعتبار دجنس سره نوم (اسم) پـه دوه ډولـه دی، مـذکر او مونـث او بیـا ددې دواړو نــه هریــو (مذکر او مونث) دوه ډوله لري :

حقیقي – غیرحقیقي

حقیقي تـذکیر او تانیـث دیتـه وایي : چې دمـذکر پـه مقابل کې مونث ښکاره شتون ولري، لکه مونږ وینو دنارینـه سړي په مقابل کې ښځینه شتون لري، هم داسې دغـوایي پـه مقابل کې غوا، دپلار به مقابل کې مور، دمیړه پـه مقابـل کې میرمن، دورور پـه مقابـل کـې خـور، دغـلام پـه مقابـل کـې وینزه، داس په مقابل کې اسپه، دچرګ به مقابل کې چرګـه او داسې نور... شتون لـري، داپـه دې معنـی چې د تـذکیر او تانیث دغه ډول په ساکښو کې مندل کیږي.

غیرحقیقي تذکیر او تانیث هغـه دی چې دمـذکر پـه مقابله کې مونث پـه ښکاره توګـه شتون ونلـري لکـه : لرګی .

غړګی .ببری . مذکر کارول کېږي، خو په مقابل کې يې مونث شتون نلري،هم دمونث په مقابل کې مذکر شتون نلري، لکه :(مستې، شيدې، تروې، شلومې، يا لکه: خاوره.مالګه.ګوره.اوسپنه .ايره دښځينه جنس نومونه کارول کېږي په مقابل کې يې د مذکر جنس څخه نومونه شتون نلري.

دليکنې مقاصد:

دهرې ليکنې دليکلو ترشاه خامخا کومه وجه او يا کوم محرک شتون لري او دليکلو به يې ضرور څه موخه اومقصد وي،دمقصد پرته ليکنې مثال دهغه جسم دی؛ چې په هغه کې روح نه وي؛ له دې وجې د هر ليکوال لپاره دليکنې ليکلو څخه وړاندې دهدف تعنيول پکاردي! په دې سره به نه يوازې دهغه ليکنه دژوندۍ ليکنې بڼه ومومي، بلکې دليکوال داندونو، او افکارو تاثر به هم ترلوستونکو پورې ورسوي.

دبل هر غرض نه وړاندې لومړی غرض به يې دالله (ج) رضاء مندل وي! دلوستونکو اصلاح او هغوی ته ددين پيغام رسول وي، ليکوال بايد داخبرې په زړه کې کينوي او ورته دخپل زړه دروازې پرانيزي! په همدې اړوند دلته څو پوښتنې راوړو، څو دنويو ليکوالو سره داهدافو په تعينولو کې مرسته وکړي:

-ته! دکوم هدف لپاره غواړې ليکنه وليکي،هغه دژوند تر کومې برخې سره تړاو لري؟

-هغه لوستونکي چې ستا ليکنه لولي !دهغوی ذهني وړتياوي،فکري استعدادونه اونظرياتي لرليدونه څه دي؟

-ايا ستا !ليکنه اوهدف هغوی ته څه ګټه رسولی شي؟

-دليکنې لپاره کوم هدف چې تا ټاکلی ،ايا هغه دعمل وړ دی؟ ترلاسه کېدای شي؟

-تا !چې کوم هدف غوره کړی ايا هغه ښکاره دی او خلک په هغه باندې په اسانه پوهېدای شي؟

ددې پوښتنو په مرسته نوی زده کونکی ليکوال کولی شي، دخپلې ليکنې لپاره موخې وټاکي،دلته مونږ له هغه سره لږ ه مرسته نوره هم کوو:

دليکنې درې ګونې موخې:

دليکنې لپاره عموماً پوهان درې موخې په ګوته کوي:

۱.معلومات خورول۲.د دين لورته دعوت او ترغيب ورکول ۳.تفريحي مواد خپرول.

حقيقت دادی چې په دې درېواړو کې دهدف لفظ په لومړيو دوه موخو صدق مومي، هر چې درېيمه ده، هغه خپله بذات مقصود نده، بلکې دوړاندېنو دواړو مقاصدو دتکميل او لاسته راوړونې لپاره و سيله ده، په هره ليکنه کې چې داخلاقي حدودو دننه دبامعنی شوخۍ ظرافت او طنز ته ځای ورکړل شوی وي، هغه ښه په اسانه توګه دلوستونکو زړونه نيسي.

دغه درېواړه، موخې يا مقاصد له يوبل سره متباين ندي؛ چې چېرې يو راځي، بل به نه راځي؛ بلکې درېواړه په يوه ليکنه کې يوځای هم راتلی شي، لکه دارقامو، حقايقو او پيښو نه په جوړ شوی معلوماتي مضمون کې چې ځای په ځای دطنز، او مزاحې شوخۍ مالګه شيندلې وي، ددعوت، اصلاح او ترغيب په برخه کې دغسې مضمون زيات موثر وي، هغه ليکنه يا مضمون چې پکې دادرېواړه موخې پکې نه وي ځای هغه معياري او مقبوله نه ګڼل کېږي،ليکوال ته پکاردي، چې دهغه نيت صاف، هدف يې لوړ، او عزم يې

پوخ وي، په ليکنه کې دمستندو معلوماتو پـه راوړو دعامو خلکو اذهان جوړولو او دفکرې روزنې لورته پـه پام اړولو لـه سفلي ارادو او د هغو عاميانه جذباتو نـه ځان وژغوري، کوم چې ددنياوي او اخروي ژوند ته د زيان زريعه ګرځي.

دليکنې عناصر:

اسان الفاظ . لنډې جملې .لـه يوبـل سره ربط لرونکي پيراګرافونه .

دهرشـي عنصـر دهغــه د جوړښـت خپـل اساسـي ترکيبي اجزاء وي، چې دهغو په خپلمنځي ارتباط سره هغه شـی وجـود مـومي! دلتـه ترهڅـه دمخـه مـونږ دليکنـې ددې درې عناصرو په اړه لاندې توري راوړو:

دليکنې درې ګوني عناصر:

(۱)الفاظ(۲) جملې(۳)پيراګراف او بيا ددې درېو پـه باب د څلورو خبرو پيژندل ضروري دي:

-الفاظ څنګه غوره شي؟

- په جملو کې د الفاظو ترتيب څنګه ښه دی؟

-له جملونه پيراګراف څنګه جوړيږي؟

-د درېواړو يوځای کولو لپاره بايد کوم اسلوب غـوره شي؟

په دې اړه نور سپيناوي ته هم اړتياده.

الفاظ:

ليکوال په هره ژبـه کې چې غـواړي مضمون وليکي، بايـد ځـان سـره دهغـې ژبـې دالفـاظو دومـره پريمانـه زخيـره ولـري، چـې هـر کلـه دهغـه پـه زړه کې کومـه نـوې نکتـه راګرځي،دليک په دايره کې دهغې د راوستو لپاره مناسب الفاظ ومومي، که بيا،بيا هم دايوه معنی راځي،نو حافظه يې بايد ورته مترادف الفاظ ور کړای شي.

دپخوانيو اونويو الفاظو په ځای دليکـدود الفاظ کـارول غوره دي، دليکوالۍ زده کوونکی بايد پوی شي چې پـه ليکنـه کې لفظي تعقيدات اونامانوس الفاظ راوړل ليکنـه بې خوندە بې ځانـه او خشـکه ګرځـوي او پـه مشـقت کـې لوسـتونکي مبتلـی کـوي اوداکـار پـه هـواره لار کې هغـې تيـرږې تـه ورتـه دی، چـې دليکـوال سـره تلـونکی ژر لـه مزلـه نـه سـتړی کوي.نوي ليکوالان بايد درک کړې چې د نامانوسو کلماتو، الفاظو او ترکيبونو له راوړو ډډه وکړي.

جملې:

جملې په لړو الفاظو کې راوړل ښکاردي، ځکه پـه لنډو جملو کې چې کوم خوند او راښکون شته، پـه لويـو او اوږدو جملو کې هغه نشته، کـه يـوه معنی پـه اتـو لفظونو کې افاده کېدای شي په لسو لفظونو کې دهغې راوړل ښکارندي.

مبتـداء بـه وړانـدې راوړې کـه خبر؟اسـم بـه مخکـې راځي که فعل؟ ددې اهميت پيژنـدل ښکـاردي، نـوی ليکـوال چې کومه جمله ليکي دمخکنيو جملو سره مطابقت لرلـو تـه به ځير وي.

دفعـل او فاعـل ميتـداء او خبـر تـرمنځ لنـډه فاصـله ښکـارده، څـو لوسـتونکي دجملـې داجـزاوو، يـا دلفظ او دهغـه دادواتو ترمنځ ارتباط په اسانه معلوم کـړای شي، لنډه داچـې لنـډې جملـې راوړل عمومـاً داوږدو جملـو راوړو نـه غـوره او راښکونکې دي.

پيراګراف:

پيراګـراف ځانتـه مسـتقل وحـدت دی، چـې ورتـه دعنوان ليکلو حاجت نشته او بيا دغه پيراګراف لـه نورو څـو پيراګرافونـو سـره پـه يوځـای کېـدو مضـمون جـوړوي، چـې هغه جلا عنوان لري! او بيـا دڅـو مضامينو لـه يوځـای کيـدو څخه کتاب جوړيږي.

هو! پيراګراف ديوه مفهوم دروښانولو او ښکاره کولو يا يوائحي ديوه حقيقت دتشريح لپاره د څو جملو نه جوړې مجموعې ته ويل کېږي، دکومو جملو ترمنځ چې به کلک مناسبت او ښکاره ارتباط وي،په پيراګراف کې داسې وحدت او استقلال راوستل پکاردي چې دهغه په وجه يولنډوکی مضمون يا دمضمون دننه بل مضمون وګڼل شي، له دې وجې به يکي داستقلال عنصر هم شتون لري،يعنې هغه بايد ديوې نتيجه زيږونې او ديوې معلومې نکتې د توضيح لپاره وي.

دپيراګراف اوږدوالي بايد منځينی وي، نه زيات اوږد اونه زيات لنډ وي، البته عموماً داوږده په ځای لنډ پيراګراف غوره دی.

دپيراګراف جوړښت به روان، مسلسل او منطقي وي، دمطلوبه مقصد په بيانولو کې به يې هره جمله په وړاندينۍ جملې مبني، او دراتلونکي جملې لپاره تمهيد وي.

په ورته توګه دهرو دوه پيراګرافونو ترمنځ داسې ارتباط پکاردی، چې هر پيراګراف به دوروستي پيراګراف سره خامخا اړيکه ولري، ځکه چې په ټولېزه توګه ټول پيراګرافونه يوائحي ديوه عنوان دتوضيح لپاره راوړل کېږي.

اسلوب:

اسلوب لفظ عموماً دروان عبارت لپاره راوړل کېږي چې لفظي تعقيد ونلري، داسلوب يوه بله معنی داده چې دليکنې ښه خاکه جوړول، مواد په ښه توګه راوړل، دليکنې پايلې ښکاره کول،اوهر هغه څه چې دليکنې دمعياريتوب سره مرسته کوي هغه په پام کې نيول؛ له دې پلوه د اسلوب په تاکلو کې لاندينو اصولو لحاظول اړين دي:

— بايدليکوال حتی الامکان دواحد متکلم (انانيت) ضمير له راوړو ډډه وکړي

— قافيه بندي که له تکلف پرته په وقفه وقفه وي غوره ده؛ هم داشان غبرګې جملې راوړل دليکنې دخوند تومنه خوږوي.

— له مشهورو شعرونو يامتلونو ډډه کول.

— ديته هم ځېرنه پکارده چې معنوي تکراريا په بيا بيا يوه نکته سپړل لوی عيب دی.

— دغوره اوعمده اسلوب يوه نښه داده چې دجملو ترمنځ داسې ارتباط بايد راشي چې هره وروستۍ جمله دوړاندينۍ جملې سره تړلې اوپيوست وي. بله نښه يې داده دومره لنډيز چې څومره لوستونکي خوښوي،هغوی ته هم هغومره نوي نوي مواد ور کول پکاردي،ليکوال چې دکومې نکتې تشريح کوي دهغې دتشريح وروسته يوه کرښه هم اضافه ونه ليکي ، بلکې هغه ته پکاردی چې راتلونکې خبره پيل کړي او لوستونکي هغې ته متوجه کړي.

هر کله چې ليکوال ديوې ليکنې دليکلو څخه فارغ شي هغه ته پکاردي چې داسلوب معلومولو لپاره په لوړ غږ کې يې ولولي.څو دجملو ترمنځ مناسبت وګوري او دلفظونو په ترکيب کې پخپل منځي هم آهنګي او دجملو په ربط او تسلسل ډاډمن شي نوربيا

# ګیمبیا اوپکې د زړورتوب نه ډکه بله پرېکړه

حسن زوی

د اسلامي نړۍ د غم نه ډکو خبرونو او پېښو په منځ کې یو د خوښۍ خبر دادی چې په ګیمبیا کې د انګلیسي اشغال وروستۍ نښه هم له منځه ولاړه او د انګلیسي پرځای عربي رسمي ژبه وګرځېده.

ګیمبیا د لویدیځې افریقې نسبتاً یو کوچنی خو ممتاز هېواد دی ؛ دا هېواد ۱۰٫۷۸۹ کیلو متره مربع مساحت لري ؛ د نفوسو شمېر یې یو ملیون او ۹ سوه زره ته رسېږي؛ له ۳ اړخونو ترې سنیګال راتاو دی او لویدیځ لورته یې بحر اقیانوس دی ټول هېواد یوه داسې نړۍ ترانګه ده چې تر ټولو زیات پلنوالی یې ایله ۴۸ کیلو مترو ته رسېږي ؛ بنجل ښار یې پلازمېنه ده او د هېواد تر ټولو ستر ښار سریګنډ ادی چې همدا یې د سیاسي ،اقتصادي ټولنیزو او کلتوري چارو مرکز دی ؛ ځمکه یې ښه حاصل خېزه ده چې ټوله د ګیمبیا له روده خړوبېږي؛

د ګیمبیا رود افریقا له مشهورو رودونو څخه دی د ګني له غرونو سرچینه اخلي له سینیګال نه تېرېږي ګیمبیا خړوبوي او بیا کابود ۱۱ سوه کیلو متره اوږدې مسافې پرې کولو نه پس بحر اقیانوس ته غورځېږي ؛ ګیمبیا ته زیات شهرت همدې د ګیمبیا رود وربخلی دی او د او بوله لارې د بحر اقیانوس سره افریقا د همدې رود له لارې تړل شوې ده ؛ د کال په کمو میاشتو کې دلته بارانونه کېږي چې کلنی مقدار یې ایله ۱۳۰۰ ملي متروته رسېږي ؛ د دې هېواد په ګڼو ځنګلونو کې د ځنګلي حیواناتو ډېر انواع موندل کېږي.

د ګیمبیا ۹۰ سلنه وګړي سوچه مسلمانان دي چې زیاتره یې په فروعو کې د حضرت امام مالک رحمه الله تعالی پیروي کوي او د باطن د اصلاح او تصوف پکې عام دی؛ په هېواد کې

۸ سلنه کاتولیکان عیسویان دي اوکابو ۲سلنه يې نورنامسلمان دي.

پرهند دانګلیسانو دقبضې پرمهال چې دغلام احمد قادياني په نوم يوکذاب دانګلیسانو په لمسون د پیغمبرۍ دعوه کړې وه او په هند اوشاوخواسیمو کې يې پیروان هم پیداشول چې قاديانيان بلل کېږي اودرسول الله صلی الله علیه وسلم دختم نبوت نه دانکار اويوکذاب ته دپیغمبر ويلو له امله دشرعي اصولو له مخې دامت دعلماءو په اتفاق نامسلمان دي ، خوقاديانان دخلکو دګمراه کولولپاره ځانونه مسلمانان ښايي اولويديځ هم داسلامي هېوادونو په دولتونو ډېرزيات فشارراولي چې قاديانان په رسمي توګه مسلمانان ومني ؛ په ګیمبیا کې هم په لږشمېر کې دغه قاديانان شتون لري چې په اړه يې دګیمبیا ولسمشرښاغلي يحيی جامع ډېره دجرأت نه ډکه پرېکړه وکړه اوکابو دوه اوونۍ وړاندې يې رسماً نامسلمان اعلان کړل اودادی اوس يې دټولي نړۍ مسلمانانولپاره يوه بله خوشالونکې پرېکړه وکړه اودانګليسي پرځای يې عربي رسمي ژبه وګرځوله.

ترټولو وړاندې دمراکش عربو سوداګرو په لسمې مسيحي پېړۍ کې دګیمبیا ذکرکړی و؛ اوپه منظمه توګه دلته دموريتانيااوسينيګال دمسلمانو مبلغينو له لوري داسلامي دعوت کار په يولسمې مسيحي پېړۍ کې پيل شوی چې په ډېرې لږې موده کې په ډېرې تېزۍ دلته اسلام خپورشواوپه دولسمې مسيحي پېړۍ کې چې مسلمانو حاکمانو په مشرۍ کې دسينيګال درود چارچاپېره دتکرور په نوم سلطنت رامنځته شو نواسلام دلته بياډېره وده وموندله.

ګیمبیابیا دغانا اومالي سلطنت برخه وګرځېدله خوپه ۱۵مې پېړۍ کې چې پرتګالي سوداګرودې سيمې ته مخه کړه نودپرتګال پرسلطنت مسلط انتونو ګیمبیاته سترګې خړې کړې اوپه ۱۵۸۸م کې يې له خپل لورې د ګیمبیا دسیند سوداګريزحقوق پرانګريزانوو پلورل؛له دې نه پس انګريزانو ته دلته دقدمونو اېښودلوموکه په لاس ورغله ؛ګورلينډنومي يوانګريزد ګیمبیا يوه جزيره قبضه کړه اوپه جيمزآی لينډيي ونوموله اوچې کله په ۱۷۵۸م کې فرانسې سيني ګال قبضه کړنودآکستهس په مشرۍ کې انګليسي قواوې پر ګیمبیا قابضې شوې ؛ داهغه زمانه وه چې فرانسويانواو انګليسانو به په زوردافريقانه ازادانسانان په کښتيوکې راوړل اودغلامانو

په نوم به یې په امریکا اویوشمېرنورو هېوادونوکې پلورل؛ برتانې دانسانانوددې تجارت لپاره په ګیمبیاکې یوه سمندري اډه هم جوړه کړې وه
؛دګیمبیا اودګیمبیا درود په سربه دبرتانې اوفرانسې ترمنځ دتاوتریخوالي پېښې هم رامنځته کېدې اوهریوبه کوښښ کاوه چې ددې هېواد پربرېکړې په خپل لاس کې واخلي.
دلته ددوئ پرضد دمسلمانانوله لورې مقاومت هم روان واو دګیمبیا مسلمانومشرانوبه ددوئ دپرېکړو سره خپل مخالفت ښکاره کولو خو ډېر ژربه دغاصبو انګرېزانو له لورې په شهادت رسولی شول
دانسان پلورلوداکاروبارتر۴پېړیوروان وچې پدې ۴پېړیوکې یوائې په امریکاکې تر۳ملیونوپورې افریقایان پلورل شوي وو ؛ په ۱۸۰۷م کې چې دبرتانې دولت دانسانانوپه پلورلواوپېرلوبندیزولګولونودبرتانې سمندري ځواکونوبه دافریقادمختلفو هېوادونونه دراوړل شویوانسانانونه ډک سمندري جازونه په بحراقیانوس کې ودرول اویکې سپاره ټول انسانان به یې ترې دګیمبیادسیند پرغاړې پرتې میګارتې نومې جزیرې ته راوړل چې دلته به دنویوازادوشویوغلامانو نوی ژوند پیلېدلواودهرځای به چې ووبیابه دهمدې ځای اوسېدونکې ګڼل کېدل.
برتانې خوپه ښکاره دلته دانسان پلورنې اوغلامۍ باب بند کړی و خوچې ددوهم نړیوال جنګ پرمهال به برتانې دګیمبیا ځونان په جبري ډول دفوځ لیکو ته راوستل اودجنګ په ټولو سختو ډګرونواوپه ځانګړي ډول دبرماپه ځنګلونو کې به یې دخپلو اهدافو دحصول لپاره دګیمبیا په شمول دافریقا دځوانانوله وینو کارا خستلو.
ددوهم نړیوال جنګ له امله چې لویه تباهي رامنځته شوې اودنړۍ په قبضه شویوهېوادونوکې داشغالګروزبرځواکونونه دآزادۍ اخستلو تحریکونه پیل شوي وونوپه ۱۹۲۰کې دګیمبیادکوځې کوځې نه هم دآزادۍ نارې راپورته شوې چې داوږدوهڅونه پس د۱۹۲۵م کال دفورورۍ میاشتې په ۱۸ مې نېټې ګیمبیا دبرتانې نه ازادي ترلاسه کړه اودګیمبیا د رود په خولې کې پروت بنجول نومې ښارېې پلازمېنه وګرځېده ؛ د۱۹۸۱م کال په جولای کې چې دولسمشر ((داودکیراباجوارا)) پرضد فوځې بغاوت

شوی و نوددغی فوځي بغاوت دځپلو لپاره دسیني ګال فوځ راغوښتل شوی و ؛ دسیني ګال فوځ چې دفوځي بغاوت په ځپلو وتوانېد نودسیني ګال اوګیمبیا ترمنځ د ,,سیني ګیمبیا،، په نوم مشترک دولت رامنځته شو ؛په ۱۹۸۹کې ګیمبیا دګډ دولت نه جدایې اعلان کړه د۱۹۹۴م په فوځي انقلاب کې دولسمشرجوارا اداره له منځه ولاړه اوفوځي مشر یحی جامع واک ته ورسېدلو ؛ د۲۰۰۱م دانتخاباتونه پس یحی جامع دهېواد ولسمشر شو چې لاهم دهېواد ولسمشردی اوهمده قادیانان نامسلمان اعلان کړل اودهېواد درسمي ژبې په توګه یې دعربۍ په اعلانولو دانګلیسي استعمار وروستۍ نښه هم له منځه یوړه.

دګیمبیا ددې اقدام په اړه خوتراوسه دغربي نوروهېوادونوله لورې کوم غبرګون ندی رامخې ته شوی یوائې د(( پریس افریک )) نومي فرانسوي اخبارپدې اړه خپله اندېښنه ښکاره کړېده اولیکلي یې دي چې داسې ښکاري چې دګیمبیا ولسمشرددې هېواد نظام په اسلامي نظام بدلول غواړي.

دتعصب نه ډکې دې خبرې دتردید په ترڅ کې په ګیمبیاکې دعربۍ او اسلامي علومواداري مرستیال محمدصارویلي دي :دګیمبیا ولس دعربۍ سره جورتړاو لري اوددې مسلماني ټولنې دیني شالید ډېره روښانه دی ؛ پدې سیمې کې له مودوراهیسې عربي رائجه وه اود ((وولوفاومینډنګا ) )بادشاهانوددفتراودربار ژبه عربي وه اوپه سکوباندې یې هم عربي حروف نقش وو نواوس هم چې دګیمبیا کوم کلي ته ورځې عربي ویونکي به پکې خامخا مومې ؛ دعربۍ ژبې دشتون اوبقالامل دلته دیني مدارس دي ،،

دمدرسة السلام مدیرمحمد جالو ویلي دي چې ,, دګیمبیاپه مسلمان ولس کې داسلامي تشخص په بقاکې داسلامي عقایدو اوعربي ژبې ډېره لویه ونډه ده ځکه خوانګلیسي استعمار دډېرو کوښښونو په نتیجه کې انګلیسي ددې هېواددفتري ژبه وګرځوله ترڅوددې ولس دعربۍ ژبې سره تړاوپرې شي خوپکې ناکام شول او اوس یوځل بیاعربي ددې هېواد رسمي ژبه اودتعلیم ذریعه وګرځېده.

# قناعت چیست وقانع کیست؟

(دکتور محمد اسماعیل لبیب)

قناعت یکی از صفات بس مهم ونیک راد مردان بزرگ، بلکه یکی از عطیة الهی برای بندگان برگزیده ومحبوب پروردگار است.

تعریف ومفهوم قناعت:

قناعت که أصلا راضی بودن به بهره، نصیب و تقسیم الله تعالی است. راجع به تعریف آن أقوال متعدده از علماء نقل شده است. راغب اصفهانی می گوید:

القناعة الاجتزاء باليسير من الأغراض المحتاج إليه.

» قناعت اکتفا نمودن به چیز کم واندکی از چیزهایی است که انسان به آنها نیاز دارد، جاحظ عالم لغوی راجع به قناعت می گوید:

» القناعة هی الاقتصار علی ما سنح من العيش و الرضا بما تسهل من المعاش و ترک الحرص علی اكتساب الأموال و طلب المراتب العالية مع الرغبة فی جميع ذلک والميل اليه و قهر النفس علی ذلک والتقنع باليسير منه.

قناعت اکتفا بر آن وسائل زندگي است که میسر شده است و راضی شدن به آن اندازه از أمور معاش است که به سهولت به میان آمده، و ترک حرص برای به دست آورن أموال و ثروت و ترک طلب و تقاضای مراتب عالی و منازل بلند، با وجود که رغبت و علاقه و دلچسپی بر آن موجود است، ونفس رادرین راستا مغلوب نمودن وقناعت بر چیز اندکی از ان می باشد« وبرخی از علماء قناعت راچنین تعریف کرده اند

» القناعة هی الرضا بما قسم الله ولو كان قليلا وعدم التطلع الی ما فی أيدی الآخرين وهی علامة علی صدق الإيمان.

» قناعت عبارت از راضی بودن به آنچه که الله تعالی به (بندگان) تقسیم نموده گرچه اندک باشد و عدم تطلع وچشم داشتن به آنچه که به دست دیگران است وهمین نشانه صدق و راستی إیمان است.

ابن تیمیه راجع به قناعت گفته است:

» هی ترک الرغبة فيما لا ينفع فی الدار الآخرة التی لا

یستعان بها علی طاعة الله عز وجل«.

» قناعت عبارت از نداشتن میل و علاقه بر آنچه که در سرای آخرت به سود انسان تمام نمی‌شود و آنچه که بر طاعت الله تعالی از آن استعانت جسته نمی شود.

## مراتب قناعت:

علما برای قناعت سه مرتبه ذکر کرده اند:

۱ - اینکه انسان بر آنچه که از دنیا برایش رسیده قانع بوده و از تقاضا و تعرض بیشتر از آن خود را نگهدار.

مالک بن دینار می گوید:

» ازهد الناس من لا تتجاوز رغبته من الدنیا بلغته«

» زاهد ترین انسانها کسی است که رغبت و میل وی به دنیا از آنچه که برایش رسیده است تجاوز نمی کند.

۲ - اینکه قناعت او را در حد کفایت متوقف سازد و بیشتر و بالاتر از حد کفایت را حذف کند طوري که در اثر آمده من رضی بالمقدور قنع بالمیسور.

» کسیکه بر آنچه برایش مقدر شده راضی شد بر آنچه برایش میسر شده قانع می شود.

۳ - اینکه قناعت او را بر آنچه که برایش رسیده متوقف سازد و آنچه که برایش مي‌آید ناپسند نمی باشد هر چند زیاد بوده باشد و در پی طلب آنچه که دریافتش مشکل است نمی گردد هر چند کم واندک باشد.

## فوائد قناعت:

قناعت بدون شک فوائد زیاد دارد که ذیلا به برخی از آنها اشاره می نماییم:

۱ - از فوائد قناعت اینست که قلب انسان با إیمان به الله تعالی و اعتماد بر آن و رضا بر آنچه که برایش مقدر و تقسیم شده مملوء می گردد.

» إن من ضعف یقینک ان تکون بما فی یدک أوثق منک بما فی ید الله«

» از نشانه سستی یقینت آنست که اعتمادت بر آنچه که در دست داری بیشتر از آنچه باشد که در دست الله تعالی است«.

۲ - زندگي خوش و گوارا نصیب انسان قانع می گردد. الله تعالی فرموده است:

» مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً » [النحل : ۹۷]

» هر مرد و زنی که کار نیک وشایسته انجام دهد و در حالی که ایمان داشته باشد ما زندگي خوش و گوارا برایش فراهم می سازیم«

ابن جوزی می گوید:

» من قنع طاب عیشه ومن طمع طال طیشه«

» هر که قناعت نماید زندگی‌اش خوب و گوارا می‌شود وهر که طمع نماید سر گردانی اش به درازا می‌انجامد«

۳ - از فوائد قناعت آنست که به قناعت شکر منعم حقیقی که پروردگار است تحقق می یابد. زیرا کسی که به رزق پروردگار قانع شد به شکر او می‌پردازد از زین سبب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرموده اند:

» كُنْ وَرِعًا تَكُنْ أَعْبَدَ النَّاسِ وكُنْ قَنِعًا تَكُنْ أَشْكَرَ النَّاسِ» (سنن ابن ماجه - عن ابي هریره.

» ورع و تقوا پیشه کن تا عابدترین انسانها شوی قناعت اختیار نما تا شاکر ترین انسانها گردی«

۴-رستگاری و بشارت نصیب قناعت پیشه گان است در حدیثی که به روایت فضالة بن عبید آمده رسول الله صلی الله علیه وسلم فرموده اند:

» طُوبَى لِمَنْ هُدِيَ إِلَى الإِسْلَامِ وكَانَ عَيْشُهُ كَفَافًا وَقَنَعَ »( سنن الترمذي:

» خوشحالی باد کسی را که به اسلام هدایت شده ومعیشتش به اندازه کفایتش بوده وقناعت داشته باشد ودر حدیث دیگر که مسلم روایت کرده آمده است .

» قَدْ أَفْلَحَ مَنْ أَسْلَمَ وَرُزِقَ كَفَافًا وَقَنَّعَهُ اللَّهُ بِمَا آتَاهُ»(صحیح مسلم.

»به یقین به فلاح ورستگاری رسیده کسیکه به اسلام گرویده وبه قدر کفایت روزی داده شده والله او را بر آنچه که داده قناعت بخشیده است«

۵ -قناعت انسان را از گناهان که قلب را تخریب و نیکی ها را از بین می برد نگهمیدارد چون حسد، غیب، سخن چینی و دروغ و غیره وبرخی از حکماء گفته اند :

»وجدت أطول الناس غماً الحسود وأهنأهم القنوع«

»باغم ترین انسان را حاسدان وآرام ترین وخوشگوار ترین آنان را قناعت پیشه گان یافته أم.

٦ -حقیقت غنامندی در قناعت است، رسول الله صلی الله علیه وسلم در حدیث که بخاری ومسلم روایت نموده اند فرموده اند:

» لَيْسَ الْغِنَى عَنْ كَثْرَةِ الْعَرَضِ ولَكِنَّ الْغِنَى غِنَى النَّفْسِ»(صحيح البخاري)

»غنای (حقیقی) از داشتن سامان وکالای زیاد نیست ولیکن غنای (حقیقی) غنای نفس است«

و در حدیث که ابن حبان در صحیح خود آورده به این لفظ آمده است.

»لیس كذلك إنما الغنى غنى القلب والفقر فقر القلب »(المستدرك على الصحيحين للحاكم)

»غنای حقیقی، غنای قلب و فقر حقیقی فقر قلب است«

سعد ابن أبی وقاص پسرش را توصیه نموده گفت:

»یا بنی إذا طلبت الغنى فاطلبه بالقناعة فإنها مال لا ينفد«

»ای پسر کم هر گاه غنا و ثروت می خواهی آنرا با قناعت بخواه زیرا قناعت مالی است که انتها نمی پذیرد«

از أبو حازم که یکی از علما و زهاد است، شخصی پرسید و گفت:

»ما مالك ؟ قال : لی مالان لا أخشى معهما الفقر : الثقة بالله، واليأس مما في أيدي الناس«

مال تو چیست ؟ أبو حازم گفت : من دو نوع مال دارم که با آنها از فقر نمی ترسم : یکی اعتماد به الله و دیگر نا امید بودن از آنچه که در دست مردم است«

۷ -عزت مسلمان در قناعت و ذلت او در طمع است این مطلب در حدیث که حاکم نیشاپوری آنرا روایت نموده و صحیح خوانده آمده است .

» شَرَفُ الْمُؤْمِنِ قِيَامُ اللَّيْلِ ، وَعِزُّهُ اسْتِغْنَاؤُهُ عَنِ النَّاسِ« .

»اند شرافت مسلمان در شب (به نماز) ایستادن وی و عزتش در استغنا و بی نیازی اش از مردم است«

بادیه نشینی به باشند گان بصره گفت : سید وسر دار اهل بصره کی می باشد ؟ گفتند : حسن است ، گفت : با چه چیز سیادت را کمایی کرده است ؟ گفتند : مردم محتاج به علم او می باشند واو از دنیای مردم مستغنی است ،

## موانع دست یابی به قناعت:

البته تعدادی از أسباب وعواملی اند که مانع دست یابی و رسیدن به قناعت می گردد که ذیلاً برخی آنهارا یادآور می شویم:

۱ - کشش خواسته‌های نفس، شهوتهایی که جز از راه کثرت مال و افزایش ماده نمی توان به آن دست یافت.

۲ - خواستن زیادت مال و طلب کثرت آن به خاطر مصرف نمودن آن در راهای خیر و کار های نیک. البته این شخص معذور بوده بلکه قابل ستایش است.

کسی به ابوزناد گفت : "چرا به مال وثروت محبت داری در حالی که ترا به دنیا نزدیک می‌سازد ؟ أبو زناد گفت : مال ثروت اگر چه مرا به دنیا نزدیک می سازد ولی مرا از آن نگهداشته است.

۳ - تمایل به افزایش مال وجمع آوری آن تا برای أولاد ها وفرزندانش ذخیره کند وبعد از خود به جای بگذارد، این چنین شخص با جمع آوری مال شقی و بدبخت بوده به گناه آن مؤاخذه خواهد شد و از چند نگاه قابل ملامتی وسزاوار نکوهش است:

ألف - بد گمانی به پروردگار در باب رزق و روزی رساندن به بندگان.

با - این شخص با اعتماد به ماندن مال به اولادهایش برای حوادث روزگار، اعتمادش را از الله کم می کند.

ج - محروم شدن خود شخص از منافع مالش.

د - این شخص برای جمع نمودن مال زحمت وتکلیف زیاد می کشد اما خودش از خیر و نفع آن محروم وسعی وتلاشش در صورتی که مالش در وجوه خیر مصرف نشود مذموم است.

هـ - وبال و گناه جمع آوری ومحاسبه آن بر شخص خواهد بود.

شخصی به حسن بصری گفت : من از مرگ می ترسم ومرگ را بد می‌بینم حسن گفت : به خاطری که تو مال خود را پس انداخته ای واگر آنرا پیش می فرستادی پیوستن به آن ترا مسرور می ساخت.

راهای رسیدن به قناعت ودریافت آن همان طوری که اسباب وعواملی وجود دارد که مانع دست یابی قناعت است ،اسباب وعوامل ،طرق وراهای وجود دارد که انسان با استخدام آن می تواند به قناعت دست یابد که اینک ذیلا به ذکر برخی از آن ها می پردازیم

۱ - تقویه ایمان وتدریب قلب بر قناعت.

۲ - یقین داشتن بر اینکه رزق در رحم مادر نوشته شده است.

۳ - تدبر وتفکر در آیاتی از قرآن کریم به خصوص در مثل آیات ذیل

ألف - مَا يَفْتَحِ اللَّهُ لِلنَّاسِ مِن رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا [فاطر : ۲]

هر رحمتی را که الله برای مردم باز گشاید پس برای آن (رحمت) باز دارنده ای نیست.

ب- وَإِنْ يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَادَّ لِفَضْلِهِ يُصِيبُ بِهِ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ [یونس : ۱۰۷]

واگر خیر و نعمتی را بر تو اراده نماید پس هیچ کس باز دارنده فضل او نیست و به هر کس از بندگانش که بخواهد فضل خود را می رساند.

ج- وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا [هود: ٦]

وهیچ جنبنده ای در زمین نیست مگر اینکه روزی آن بر الله است.

د- سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا [الطلاق : ۷]

زود باشد که الله بعد از تنگدستی آسانی آورد.

۴ -شناخت حکمت الله تعالی در تفاوت أرزاق ومراتب بین بندگان.

أَهُمْ يَقْسِمُونَ رَحْمَتَ رَبِّكَ نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُمْ مَعِيشَتَهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا [الزخرف : ۳۲]

آیا آنان رحمت پرودگارت را تقسیم می کنند؟ ما معیشت آنان را در زندگی دنیا میان شان تقسیم کرده ایم.

۵ -دعاء و سؤال زیاد برای رسیدن به قناعت.

٦ -علم بر اینکه رزق تابع مقیاس‌های بشری نیست.

۷ -دیدن به سوی کسیکه در امور دنیا از انسان پایان تر وضعیف تر است.

۸ -خواندن و مطالعه سیرت سلف صالح.

۹ -علم بر اینکه مال و ثروتی که از راه مشروع به دست نیامده باشد سر انجام آن شر و وبال است

۱۰ – توجه و دقت بر اینکه تفاوت میان غنی وفقیر خیلی بسیط است .

## د نني مسلمان ځانګړ تیاوې - له کتاب څخه

امام غزالي رحمه الله د صدق مراتب په "احیاء العلوم" کې په دې ډول بیان کړي:

۱ – په خبره کې صدق : یعني ژبه د رښتیا نه پرته بل څه ونه وایي .

۲ – په نیت او اراده کې صدق : یعني ژبه چې رښتیا وایي، لامل او باعث یې د الله تعالی رضا کسب کول وي نه د ځان رضا کول.

۳ – د الله تعالی لور ته په قوي عزم او ارادې سره کوچ کولو کې صدق.

۴ – د کوم شي عزم یې چې کړی په هغه باندې وفا کولو کې صدق، ځکه نفس د تصمیم نیولو پر مهال ډیر قوي وي خو کله چې دوفا او عمل ډګر ته شي، بیا د ناتوانۍ اظهار کوي.

۵ – په عمل کې صدق، ځکه که د انسان د ظاهر له باطن سره په عمدي او قصدي توګه ټکر راځي ، دا ریاء ده او اخلاص له منځ نه وړي . او که دا ټکر په عمدي او قصدي توګه نه وي نو په دې صورت کې بیا صدق له منځ نه وړي . په عمل کې صدق دیته وایي چې له حق سره په ظاهر او پټه دواړو کې موافقت راشي .

۶ – بالاخره دا چې صدق په ټولو دیني مقاماتو کې لکه په حالت د ویرې او امید کې، په تعظیم کې ، په رضا کې ، په زهد کې ، په توکل کې او په مینه کې شته او همدا د صدق د ټولو نه لوړ مراتب دي . الله تعالی فرمایي:

{وَقُل رَّبِّ أَدْخِلْنِي مُدْخَلَ صِدْقٍ وَأَخْرِجْنِي مُخْرَجَ صِدْقٍ وَاجْعَل لِّي مِن لَّدُنكَ سُلْطَانًا نَّصِيرًا} (الاسراء ۸۰(

"او ووایه : ای زما ربه ! ما چې چیر ته بیایې نو له رښتینولۍ سره مې بوځه او له کوم ځای نه مې چې وباسې نو په ریښتینولۍ مې وباسه او ستا له لوري یو ملاتړ را په برخه کړه"

معنی دا چې د مسلمان داخلیدل په هر کار کې، هر یوه عمل ته لاس اچول، او یا ترې وتل د هر یوه کار پریښودل ټول د الله تعالی د رضا لپاره وي او مسلمان چې دې درجې د صدیقیت ته ورسیږي، په نظر کې یې هیڅ هدف د دنیا لور ته نه پاتې کیږي او یوازې د هغو امورو سره مینه کوي او هدف یې ګرځوي چې د الله تعالی د رضا د کسب کولو لامل ګرځي.

دا هماغه صدق دی چې سړی نیکۍ ته رابولي او جنت ته یې رسوي.

# جنګي جنایتونه ( اپریل)



## سيد سعيد

دروان (۲۰۱۵،ز) کال داپریل د میاشتي په ۵مه نیټه د ننګرهار ولایت د اچین ولسوالۍ مرکز ته نژدې پولیسو دملکي خلګو پر یو کرولا موټر ډزي کړي چي له امله يې دوه تنه ولسي وګړي شهیدان شوي او یو تن ژوبل شوي دي.

د اپریل په ۷مه د پکتیکا ولایت د اوګون ولسوالۍ په پیرکوټي سیمه کي د اربکیانو په ډزو کي دوه تنه ولسي هیوادوال ټپیان شوي او یو نفر شهید شوی دی.

د اپریل په ۸مه د کونړ ولایت دناړي ولسوالۍ په کامتلي سیمه کي د کورنیو ځواکونو دهاوان په برید کي يو ملکي وګړی شهید شو ي دي.

د اپریل په ۱۲مه د پکتیا ولایت د احمد خېل ولسوالۍ په حسن خېلو سیمه کي د داخلي عسکرو دهاوان په ډزو کي یو ملکي وګړی شهید شوی او شپږ نفره ژوبل شوي دي.

دافغان اسلامي اژانس دراپور په اساس داپریل په ۱۴مه د کاپیسا ولایت د تګاب ولسوالۍ په شاوخوا کي دحکومتي عسکرو او طالبانو ترمنځ جګړه ونښته ، دنښتي په جریان کي دحکومتي قواوو دهاوان یوه ګولۍ پر یو کور ولګیده چي له امله يې پنځه لس تنه ولسي وګړي مړه او ژوبل شول. په یاده شوې واقعه کي څلور کوچنیان ، دوې ښځي او دوه تنه نارینه شهیدان شوي او اووه نفره نور ملکي هیوادوال ټپیان شوي دي ،توغندي دسین زیو کلي کي دسمیع الله په کور لګیدلې او دپیښي ټول قربانیان دنو موړي دکورنۍ غړي دي.

د اپریل په ۱۵مه د لوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ په ګرم آبه بازار زیلاله سیمه کي د کورنیو عسکرو په ډزو کي یوه میرمن شهیده شوې او درې ماشومان ټپیان شوي دي.

د اپریل په ۲۱مه د زابل ولایت د شهرصفا ولسوالۍ په مربوطاتو کي کورنیو عسکرو دعملیاتو په ترځ کي دوه تنه ولسي وګړي چي یو تن يې لیونی ؤ له ځان سره دبندیانو په توګه ببولي دي.

داپریل په ۲۳مه د زابل ولایت د دایچوپان ولسوالۍ دمرجان په کلي کې د داخلي عسکرو ددرونو وسلو په ډزو کې پنځه تنې ښځې او ماشومان ژوبل شوي او یوه ښځه شهیده شوې ده.

داپریل په ۲۴مه د زابل ولایت د شاجوی ولسوالۍ په پاتخېلو کې اربکیانو درې تنه قومي مشران (ملاعبدالله ،حاجي عزیز خان او علي حیدر خان )په موټر کې سپاره کړي او په مځکني ماین الوزولي دي.

د اپریل په ۲۵ مه د زابل ولایت د شاجوی ولسوالۍ دشبارد جمالخیلو په سیمه کې داخلي عسکرو په سیمه کې دخپل یوه مامور دوژل کیدو وروسته یو لس کلن ماشوم شهید کړی دی، همدا رازپه شش ګاو سیمه کې دکورنیو عسکرو دهاوان په ډزوکې یوه ښځه او دوه کوچنیان ژوبل شوي دي.

د اپریل په ۲۲ مه کورنیو ځواکونودزابل ولایت مرکزقلات دسپیني غونډۍ پرکلي دچاپې پرمهال دوه تنه ملکي هیوادوال بندیان کړي دي.

داپریل په ۲۷ مه رسنیو خبر ورکړ چې: دغزني ولایت په مقر ، ګیلان او ناوه ولسوالیو کې د داخلي ځواکونو دخنجر په نوم عملیاتو کې ولسي خلګو ته پراخ زیانونه رسیدلي دي، په خبر کې دملکي وګړو له خولې ویل شوي چې: داردوعسکر،پولیس او اربکیان یې له کورونو څخه ښځې ،ماشومان او بوډاګان په زوره باسي، دکور قیمتي شیان له ځان سره خپلو پوستو ته وړي او بیا دخلګو کورونه ورنړوي،په خبر کې دعیني شاهدانو له قوله ویل شوي چې په دغو عملیاتو کې دولسي خلګو په لسهاوو کورونه ویجاړ شوي اوخلک یې له طالبانو سره د همکارۍ په تور له خپلې سیمې شړل شوي دي.

د اپریل په ۲۸ مه دهلمند ولایت دګریشک ولسوالۍ په نهرسراج سیمه کې کورنیو عسکرو دطالبانو سره ترجګړې وروسته د هاوان ډزي کړي چې له امله یې شپږ تنه ولسي وګړي شهیدا ن شوي دي.

داپریل په ۲۹ مه دغزني ولایت دشلګر ولسوالۍ په خاني کلي کې د داخلي عسکرو دهاوان په ډزو کې دوې ښځې او دوه کوچنیان زخمیان شوي دي.

داپریل په ۳۰ مه د کندز ولایت د امام صاحب ولسوالۍ په کلتیپه سیمه کې دیرغلګرو ځواکونو په بمبار کې شپږ تنه ملکي هیوادوال دښځو او کوچنیانو په ګډون ژوبل شوي او دخلګو کورونو ته زیانونه اوښتي دي.

مأخذونه:[بي بي سي راډیو ،ازادي = ،افغان اسلامي اژانس ،پژواک ،خبریال ویبپاڼه ،لراوبر= ،نن ټکی اسیا=اوبینوا=]




# په اسلام کې د خطر مدیریت

(خالد عطا)

نړیوال اسلامي پوهنتون اسلام آباد

دا یو روڼ حقیقت او د انساني فطرت غوښتنه ده چې انسان دې د راتلونکي خطراتو او مشکلاتو په نظر کې نیولو سره د خپل حال او راتلونکي ممکنه خطراتو او مشکلاتو څخه د ځان ژغورلو لپاره مختلفې احتیاطي لارې خپلې کړي تر څو د مشکلاتو په پوره توګه مخه ونیول شي او یا هم تر یو څه حده کم کړی شي. که انساني تاریخ ته یوه ځغلنده کتنه وکړو نو دا به راته جوته شي چې په هر دور کې د هغه دور خلکو د علم او پوهې سره سم د خطراتو مدیریت خپل کړی دی. دخپلو جسمونو د حفاظت لپاره چې د موسمونو او چاپیریال د مضرو اثراتو څخه محفوظ شي د مختلف قسمه لباسونو او هستوګن ځایونو انتظام کړی دی، داسې خواړه یې انتخاب کړې چې د موسمي ناروغیو څخه یې وژغوري. په دې هکله که موږ چیرته د نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) له راتګ څخه وړاندې د عربو د جاهلیت دور ته وګورو نو جوته به شي چې عربانو به هم د خطر (Risk) کمولو او یا ختمولو لپاره

مختلفې طریقې خپلولې چې بعضې یې کې ډیرې مشهورې وې لکه: عاقله، ضمان خطر الطریق او د بنو اشعر د قبیلې عمل او داسې نور تصورات، د نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) د بعثت څخه وروسته هم ځینې هغه طریقې چې کومې د اسلامي اصولو سره په ټکر کې نه وې څرنګه چې وې په هماغه ډول (As it is) یې پریښودې ځینې نورو کې یې ترمیم (Alteration) راوستو او هغه چې د اسلامي اصولو سره په ټکر کې وو منعه یې اعلان کړې،

صرف دا نه چې نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) د هغه طریقو د جاری ساتلو امر وکړ کومې چې د اسلامي اصولو سره په ټکر کې نه وې او انسان پرې د خطره ژغورل کېدلو او یا هم د خطر د کمیدو لامل وې هغه یې وستایلې او په جاري ساتلو یې خوښې څرګنده کړه.

د درنو لوستونکو د لا پوهاوي په موخه غواړم چې عاقله، ضمان خطر الطریق او د بنو اشعر د قبیلې عمل په لنډه توګه روښانه کړم تر څو لا واضحه شي.

عاقله: که چیرته به د کومې قبیلې یو نفر د کومې بلې قبیلې یو نفر په خطا سره قتل کړو نو د مقتول ورثاوو ته به یې دیت (سل اوښان یا لس زره درهمه یا زر دیناره او یا هم د دې مساوي قیمت وو) ورکول کېدلو

کوم به چې يوائې قاتل نه بلکه ټولې قبيلې به هغه په شريکه ور کولو په دې توګه به د يو شخص خطر (Risk) په ټوله قبيله ويشل کيدلو کوم به چې هر شخص په آسانه ادا کولی شو، او که نه بغير ددې څخه يو کس ته د سلو اوښانو او يا د هغې مساوي قيمت ادا کول که ناممکنه نه وې خو البته ډيره مشکله ضرور ده، د خطر د کميدلو دا طريقه د نبی کريم (ص) په دور کې هم وه او دا طريقه به يې ستايله او خوښوله هم بلکه د بعضي رواياتو په اساس نبي کريم (ص) هم په خپل ژوند کې د خپلې قبيلې له طرفه د عاقله د طريقي له مخې ديت ادا کړی وو .

ضمان خطر الطريق: دا هم د خطراتو (Risks) د کمولو او يو بل ته د منتقلولو يو طريقه وه په کومه کې به چې په عامه توګه سوداګرو ته د تجارتي توکو په خوندي لار د وړلو ضمانت ور کول کيده، که چير ته به په لاره کې سوداګر د کوم مالي زيان سره مخ شو نو مسئوليت به يې د ضمانت اخيستونکې (Guarantor) په غاړه وو، د خطراتو د کميدلو دا طريقه هم په اسلام کې روا پريښودل شوه. په نني دور کې د سفر بيمه (Travelling Insurance) د ضمان خطر الطريق ښه مثال دی، اګر که ددې عملي شکل د شرعي اعتباره درست نه دی. د بنو اشعر د قبيلې عمل: د بنو اشعر د قبيلې په هکله په روايتونو کې راځي چې د قحط سالۍ خصوصاً د جهاد په موقع به ددې قبيلې هر يو شخص خپل سامان په څادرونو کې واچولو ټول به يې سره يوځای (Mix) کړو او د خاص لوښي په واسطه به يې د قبيلې په ټولو اشخاصو د مساويتوب پر اساس وويشلو.

په رواياتو کې راځي چې نبی کريم (ص) د بنو اشعر د قبيلې دا عمل خوښولو او فرمايل به يې چې (انَّا منهُم وَهُم منّي)

ترجمه: "زه د دوي څخه يم او هغوی زما څخه دي" په دې طريقي سره به هغوې له لوږې وړپېښه خطره کموله.

همدا رنګه په قرآن مجيد کې هم د خطر مديريت (Risk Management) په حوالي سره ګڼ شمير مثالونه وجود لري، د بيلګې په ډول د ځان ژغورلو په خاطر او په سخت خطري حالت کې په لنډمهالي ډول د کفر د کلمې ويل چې زړه کې ايمان کلک او مستحکم وساتي د خطر د مديريت غوره مثال دی او فقهي علماوو دا د حالت اکراه سره تشبيه کړې دی. لکه څنګه چې الله تعالی فرمايي (مَن كَفَرَ بِالله من بَعد ايمَانه الاَّ مَن اُكرِهَ وَقَلبه مُطمَئنٌ بِالايمَان) (سوره النحل: آيه ۱۰۶) ترجمه: (چا چې د ايمان راوړلو وروسته د الله سره کفر وکړ و په هغه باندې د الله تعالی غضب او د هغه لپاره لوی عذاب دی مګر په چا چې جبر وشو او زړه يې پر ايمان مطمئن وو په هغه هيڅ ويره نشته.)پور ته آيت د حضرت عمار بن ياسر (رضی الله تعالی عنه) په حق کې نازل شوی کله چې مشر کينو هغه د کفر د کلمې په ويلو مجبور کړو او هغه (عمار بن ياسر (په ژبه د کفر کلمه وويله کله چې د نبی کريم (ص) په حضور کې حاضر شو او ټوله واقعه يې ور ته واوروله نو نبی کريم (ص) تري

وپوښتل چې زړه دې په کوم حال کې وو؟ عمار بن یاسر ځواب ور کړو "زړه مې بالکل مطمئن وو" نو نبی کریم (ص) وفرمایل که هغوی (کفار) چیر ته داسې وکړي نو تاسې (مسلمانانو) ته پکار دی چې همداسې وکړی یعني زړه مو باید چې په ایمان مطمئن وي.

همدارنګه د جنګ په میدان کې د خپل ځان د ژغورلو په خاطر د ویرې لمونځ ادا کول هم د خطر د مدیریت (Risk Management) ښه مثال دی لکه څرنګه چې الله تعالی فرمايي "او چې اوسې ته (ای محمده) په دوی کې (د دښمنانو د ویرې په وخت کې) پس اقامت وکړې ته دوي ته د لمانځه (نو لښکر دوه ډلې کړه) پس ودې دریږي یوه ډله د دوي څخه له تاسره او وادې خلی دا (لمونځ کونکي) وسلې خپلې نو کله چې سجده وکړه (د دوه رکعاتو په اول رکعات کې او د دریو او څلورو رکعاتو په دوهم رکعات کې) پس شي دي دوی وروسته ستاسي او رادې شي بله ډله چې لمونځ یې نه وي ادا کړی پس لمونځ دې وکړي دوی له تاسره او وادې خلې دوی هم اسباب د بیداری خپل کافران غواړي چې څنګه تاسې غافله شئ د خپلو اسلحو او سامانونو څخه چې هغوی په تاسې باندې یو دم حمله وکړي او نشته هیڅ ګناه پر تاسې باندې که چیر ته وې په تاسې باندې ضرر له باراني یا وئ تاسې ناجوړه چې کیږدی تاسې وسلې خپلې او ونیسئ (په هر حال کې اسباب) د بیدارۍ خپلې (د خپل ځان د مدافع له دښمنه) بې شکه الله تیار کړی دی عذاب سپکونکی د کافرانو لپاره" )سوره النسا ایه ۱۰۲)

په پور ته ذکر شوي ایات مبارک کې مسلمانانو ته د ویرې د لمانځه (صلوت الخوف) اجازت څه بلکې حکم ور کړل شوی دی او د ویرې لمونځ هغه وخت ادا کیږي کله چې د مسلمانانو لښکر د کفارو سره په جنګ کې بوخت وي او دیوې لمحې بې پروایې مسلمانان د لوی خطر سره مخ کولی شي. د ویرې د لمانځه لپاره مختلف صور تونه بیان شوې دي د بیلګې په ډول لښکر دې په دوه ډلو وویشل شي د کومې څخه به چې یوه ډله د دښمن سره د مقابلې لپاره ودریږي تر څو دښمن د حملې کولو جرئت ونکړي، او بله ډله به د امام وروسته لمونځ ادا کړي او کله چې لمونځ کونکي ډله د لمانځه ادا کولو څخه فارغه شي نو هغه به د اولې ډلې پر ځای ودریږي او هغوی ته به د لمانځه موقع ور کړي په همدې شکل به د لمونځ تکمیل وشي. د اسلام مبارک دین د ویرې په لمانځه کې هم د خطر پر اداره کولو رڼا اچولې ده.

په قرآن مجید کې د حضرت یوسف (علیه السلام) د تعبیر پیښه هم د خطر د مدیریت ښه مثال دی چې هغوی (یوسف) په راتلونکي کې د خطر د پرده پوښۍ (Cover) لپاره د غلې دانې د ذخیره کولو تدبیر وړاندې کړی وو. الله تعالی فرمايي "وویل (یوسف ع) چې کرئ به تاسې (هر قسم فصل) اووه کاله پر له پسې په ډیر زیار سره نو هر هغه چې وریبل تاسې نو پریږدئ هغه غله په کندوګانو خپلو کې مګر لږ غوندې له هغې چې تاسې یې خوری) هو همغومره قدر تری پاک کړئ) بیا به راشي وروسته له دغو (اووه کلونو ودانو) اووه نور (کلونه) سخت چې وبه

خوري (اهل د دې اوو سختو کلونو) هغه غلې چې پخوا ذخيره کړې وي تاسي لپاره د دې مگر لږ غوندي له هغه چې تاسې ساتئ (تخم ته). بيا به راشي وروسته له دى (کلونو د قحط) يو کال (چې پنځلسم به وي) چې په هغې کې به فرياد رسي وکړى شي د خلکو (په غلو او بارانونو) کي)" سورت يوسف.)

د سورت يوسف په دې آيتونو کې کې له فکر وروسته داجو تيرې چې حضرت يوسف (عليه السلام) ته چونکه الله تعالى د تعبير علم وربخښلى وو نو ځکه هغه پوه شوى وو چې قوم يې په راتلونکي کلونو کې د يو خطر سره مخ کيدونکى دى، نو نه يواځې داچې خپل قوم يې د خطر څخه خبر کړو بلکه هغوى ته يې د دې خطر څخه د ژغورلو لارې چارې هم وروښودلې چې قوم دې په متواتره توګه اووه کاله کَرنه وکړې او کومه غله دانه چې تياره شي هغه دې وريبي او په کندوګانو کې دي محفوظه کړي ترڅو د قحط سالى په وخت کې يې استعمال کړى شي. همدارنګه په سوره کهف کې ذکر شوې د حضرت موسى او حضرت خضر (عليهماالسلام) د کښتۍ په پيښه کې هم د خطر د مديريت تصور موجود دى . يعني ددې ورپيښي خطرې د مخنيوي لپاره چې بادشاه به ښايسته او ښه کشتۍ غصبولې حضرت خضر (ع) د مسکينانو کښتۍ عيب داره کړه. ځينو د خطر مديريت پوهانو د رسول اکرم (ص) د هجرت سفر د خطر د مديريت ښه مثال ښودلى دى. هغه داسې چې کله کفارو رسول اکرم (ص) محاصره کړو نو رسول کريم (ص) حضرت علي (رض) ته د خپل شين څادر سره د نبي کريم (ص) په ځاى کې د پريوتلو حکم وکړو تر څو د کفارو توجه د هغه (ص) د ملاستې په ځاى باندې وي او نبي کريم (ص) په آسانى سره وکړى شي چې له کور څخه ووځي نو همداسې وشول او نبي کريم (ص) په ډيرې آسانى سره د کوره راووتلو.

همدارنګه د هجرت په موقع د رسول کريم (ص) او حضرت ابوبکر صديق (رض) مدينې ته سفر او درې ورځې په غار ثور کې تم کيدل او د شمال د لنډې لارې پر ځاى د يمن اوږدې جنوبي لارې انتخاب هم د خطر د کمولو په موخه وو. ځکه کفارو رسول کريم (ص) ته د رسيدلو لپاره د شمال لار تعقيب کړه چې په نتيجه کې يې د کفارو وخت ضايع شو او رسول کريم (ص) د جنوب له لارې د خپل ملګري ابوبکر صديق (رض) سره مدينې منورې ته په خير خيريت سره ورسيدل.

نن په ټوله نړۍ کې د خطر مديريت د نورو علومو په څير د يو ځانګړي علم په توګه پيژندل کيږي او په مختلفو برخو لکه سفر (Travelling) او داسې نورو ويشل شوى او هر يو يې بيل بيل تشريح شوي دي. د خطر د مديريت د کاري ساحې د پراخولو او د عامه خلکو د خبرولو او پوهولو په موخه په نړۍ کې مختلف ډوله کورسونه، سيمينارونه دايريږي.

د انجينرى، طب او په نورو علومو کې داد يو لازمي مضمون په حيث تدريسيږي مګر که چير ته په اسلام کې د خطر د مديريت په هکله د پور ته ذکر شوو

معلوماتو په رڼا کې فکر وشي نو واقعاً دا به جوته شي چې اسلام د هر چا وړاندې اول ځل نه فقط د خطر د مدیریت نظریه وړاندې کړې بلکه د دغې حقیقي اهمیت یې هم بیان کړی دی. او هغه یې په عمل کې هم خلکو ته ښودلې دی.

اسلام په عقائدو، عباداتو او معاملاتو کې د خطر په نظر کې نیولو سره په مختلفو وختونو کې د خطر د پوښلو (Cover)حکم کړی دی.

ومن الله توفیق

## ۸۵ کاله وروسته ایاصوفیا کې دلومړي ځل لپاره قرآن تلاوت شو

له ۸۵ کلونو وروسته، د لومړي ځل لپاره د ترکیې ایاصوفیا موزیم کې یوه ترکي مذهبي مشر قرآن شریف تلاوت کړ. ایاصوفیا لومړی جومات و، خو د تېرې پېړۍ په ۱۹۲۳ کال موزیم ترې جوړ شو.ایاصوفیا د ترکیې استانبول ښار کې موقعیت لري، چې د نړیوال اسلامي میراث یوه بېلګه ده.دغه ځای د نژدې زرو کلونو لپاره لویه کلیسا و، بیا د نیمې پېړۍ لپاره جومات او ورپسې موزیم شو، چې هر کال د نړۍ له لروبر نه ګڼ سیلانیان ورځي.په ترکیه کې واک د کمال اتاترک له رسېدا وروسته په ایاصوفیا کې ډېر بدلونونه راغلل، چې نوموړي اسلامي نظام پر لادیني هغه بدل کړ او اسلامي خلافت یې لغوه اعلان کړ.

د علي تیل په نامه یوه ترکي مذهبي مشر د تېرې جمعې په ورځ "له رسول سره مینه" په نامه د یوه نندارتون د پرانیستلو پرمهال د قرآن شریف یو سورت تلاوت کړ.دغه مذهبي مشر د ترکیې انقرې په یوه جومات کې ملا امام دی.

دغو مراسمو ته د ترکیې د مذهبي چارو د ادارې د مشر محمد ګورمیز په ګډون ګڼ ترکي جګپوړي چارواکي هم ورغلي وو.

د اسلام له پیغمبر سره د مینې په هدف د ایاصوفیا د ننه د اسلامي خط نندارتون به د مې تر ۸ پورې پرانیستی وي.

ایاصوفیا کاتدرایه د بیزنطنیانو (ختیځ روم) د امپراتورۍ پرمهال د شپږمې پېړۍ په اوږدو کې جوړه شوه، چې د قسطنطینیې د بطریرک (پلار سالاري) د اوسېدو ځای هم و(چې بیا وروسته د عثمانیانو له راتګ سره دغه ځای ته استانبول نوم غوره شو.(

خو کله چې په ۱۴۳۵ کال عثمانیان دغه ښار ته ننوتل، دویم سلطان محمد سم لاسي په جومات ددغه ځای د اړولو امر وکړ.

د کاتدرایه ګومبزې ته نژدې د اذان منارې پکې جوړې شوې، خو د خلافت د نظام له ړنګېدا وروسته دغه جومات موزیم شو.

په ۲۰۰۲ کال په ترکیه کې واک ته د عدالت او پراختیا اسلامي ګوند تر رسېدا وروسته، یوځل بیا پر جومات ددغه موزیم د اړولو غوښتنې ډېرې شوې.ایاصوفیا د ترکیې استانبول ښار کې موقعیت لري، چې د نړیوال اسلامي میراث یوه بېلګه ده .

په ۲۰۱۳ کال د ترکي مرستیال لومړي وزیر دا خبرې په ګنو بدې ولګېدې، چې ګني د موزیم ودانۍ پر جومات اړول کېږي.

د یونان حکومت د هغه پر خبرو غوسه وښوده او دا یې "میلیونونو مسیحیانو ته سپکاوی" وباله.

# انسان په سختیو کې پېژندل کېږي

رسول الله صلی الله علیه وسلم دا آیت خپلو صحابوو ته تلاوت کوي:

(مَن ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَاعِفَهُ لَهُ أَضْعَافًا كَثِيرَةً)[البقره: ۲۴۵]

"څوک دی؟ چې الله تعالی ته قرض حسنه ورکړي بیا الله پاک د ده دا قرض څو برابره ور زیات کړي"

ابو دحداح رضی الله عنه راپاڅیږي او فرمايي: ای د الله تعالی رسوله! آیا زمونږ پروردګار له مونږ نه د قرض غوښتنه کوي؟!

هغه صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «هو» ابو دحداح صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ای د الله تعالی رسوله! د دې په مقابل کې ما ته څو چنده برابر اجر راکوي؟!

هغه صلی الله علیه وسلم و فرمایل: «هو" ابو دحداح رضی الله عنه و فرمایل: ای د الله تعالی رسوله لاس دې راواوږد کړه! هغه صلی الله علیه وسلم و فرمایل: «څه خبره ده« ابو دحداح رضی الله عنه و فرمایل: زه یو داسې باغ لرم چې هیڅوک هغه ډول باغ نه لري، زه غواړم هغه الله تعالی ته په قرض ور کړم آیا ته پوهیږې یو باغ په هغه دور کې څه وه؟ یعني یو پارک. باغ د عربانو په نزد ډیر غټ شی وه. د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا صحابي فرمايي: دا باغ الله تعالی ته د قرض په نوم وړاندې کوم.

رسول الله صلی الله علیه وسلم په جواب کې ور ته فرمايي: «ای ابو دحداح رضی الله عنه د دې په مقابل کې به تا ته اوه سوه چنده اجر در کول کیږي"

ابو دحداح رضی الله عنه په داسې حال کې چې الله اکبر! الله اکبر! یې ویل خپل باغ ته ولاړ هلته یې خپل زوی او میرمن په باغ کې ولیدل، د زوی په لاس کې یې یوه خرماوه هغه یې خوړله.

ابو دحداح رضی الله عنه په ډیرې تیزۍ سره د باغ لور ته ور ځي، غواړي چې هر څومره ژر وي باید قرض الله تعالی ته ور وسپاري، له لرې ځای نه غږ ور کوي: ام دحداح! ام دحداح! له باغ نه ولاړ شئ دا مې الله تعالی ته په قرض ور کړی. ښځه دننه په باغ کې وه. هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم له پلوه روزل شوي وه د جنت غوښتونکي وه. زوی یې چې په خوله کې یې د

خرمادانه نیولې وه او خوړله یې، ام دحداح دهغه له خولې نه دانه را وویستله او وې ویل: کخ کخ، دا باغ د الله تعالی دی. هغه لاتر اوسه په اصل موضوع باندې پوه شوې هم نه وه خاوند یې هم دیته مجبور نه شو چې شپږ اونۍ ورسره کیني او قناعت ور کړي. لکه څنګه چې د نننیو ډیري ښځو وضعیت همداسې وي خاوند ورسره کیني آیت او حدیث ور ته وړاندې کوي، خو ښځه یې بیا هم نه مني.

یوه ورځ چې عمر رضی الله عنه ته ډیر مالونه راغلل، هغه خپل غلام ته غږ وکړ او وې فرمایل: ای ځوانه! دا پیسې واخله او ابوعبیده بن جراح رضی الله عنه ته یې ور وړه، او په کور کې یې لږ وخت انتظار و اوسه تر څو در ته معلوم شي چې څه پرې کوي؟!

عمر رضی الله عنه غوښتل تر څو معلوم کړي چې ابوعبیده رضی الله عنه په دې پیسو څه کوي. کله چې غلام هلته ورسید وې ویل: دا پیسې امیر المؤمنین در ته رالیږلي او فرمایي په دې سره خپلې اړتیاوې پوره کړه. ابوعبیده رضی الله عنه وویل: الله تعالی دې هغه وساتي او رحمت دې پرې وکړي. الله تعالی دې عمر رضی الله عنه ته غوره بدله ور کړي بیا راپاڅید او غږ یې وکړ ای وینځې! راشه دا پیسې د اړو خلکو تر منځ تقسیم کړه، هغې ټولې د فقیرانو او اړو خلکو تر منځ تقسیم کړې تر دې چې ټولې پیسې یې ختمې کړې.

غلام بیر ته د عمر رضی الله عنه خوا ته ورغی او عمر رضی الله عنه څلور سوه نورې ور کړې او وې فرمایل: دا معاذ بن جبل رضی الله عنه ته ویسه او وګوره چې څه پرې کوي؟! غلام هغه ته ورغی او په کور کې یې څه موده هم ورسره تیره کړه. معاذ بن جبل رضی الله عنه ولید چې غږ کوي: ای وینځې! راشه دا پیسې په اړو خلکو تقسیم کړه، بیا یې پیل وکړ هغه یې په اړو، نیستمنو او بې وزلو باندې و ویشلې. میرمن یې چې د کور له داخل نه د دې پیښې ننداره کوله. غږ وکړ: په الله تعالی قسم زه هم بې وزله یم. معاذ رضی الله عنه ور ته وویل: دوه درهمه نور پاتې دي، دا ته واخله.

غلام بیر ته عمر رضی الله عنه ته راغی عمر رضی الله عنه څلور سوه نورې ور کړې او وې ویل: دا سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه ته ویسه. حضرت سعد رضی الله عنه هم دې پیسو سره همداسې کار وکړ لکه نورو مخکینیو ملګرو یې چې وکړ. غلام بیا عمر رضی الله عنه ته راغی. عمر وژړل او وې ویل: الحمدلله، دوی ټول ورونه دي چې ځینې یې د ځینو نورو په څیر دي د ټولو روزنه، سرچینه او معدن یو دی وروسته د رسول الله صلی الله علیه وسلم له وفات نه بدل شوي نه دي .دا طلحه بن عبدالله رضی الله عنه دی یو ځل په یوه معامله کې سل زره درهمه ګټه تر لاسه کوي، غمژن کیږي، خپلې میرمن ته ورځي، میرمن ترینه پوښتنه کوي: په تا څه شوي؟! طلحه رضی الله عنه ور ته وایي: ډیره شتمني مې تر لاسه کړې ده، ویریږم چې له دې ټولې شتمنۍ سره د الله تعالی مخ کې حاضر نه شم چې د هر یوه درهم په اړه رانه پوښتنه ونه کړي. میرمن یې ور ته وویل: ستا د ناراحتۍ لامل همدا دی؟ هغه وویل: په الله تعالی قسم د خپل مال په اړه د الله تعالی د ملاقات نه ویریږم. میرمن یې ور ته وویل: د حل لاره ډیره آسانه ده. راشه چې خپل منځ کې یې

تقسیم کړو. بیا یې ویسه او دمدینې د فقراءو تر منځ یې وویشه .بیاد خپلې میرمن سره کیناست پیسې یې په بټوو کې کیښودې او د بې وزلو، نیستمنو او فقراءو تر منځ یې تقسیم کړې. کله چې بیر ته راغی ویل یې: ستاینه ده هغه ذات تـه چې زه یې داسې وګرځولم چې پاک سوتره له هغه سره ملاقات وکړم.

د دې معنادانه ده چې سړی خپل اولاد پر ته له مال نه همداسې نیستمن پرېږدي.

عامر بن سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه له خپل پلار نه روایت کوي چې وې فرمایل: د وداع (خدای پامانۍ) د حج په کال کې سخت ناروغ شوم او رسول الله صلی الله علیه وسلم زما پوښتنې ته راغی . ما ور ته وویل: زه سخت ناروغ یم او زه شتمن یم او پر ته د یوې لور نه بل وارث هم نه لرم . آیا د مال له درې بر خو نه دوه خیرات کړم ؟هغه صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «نه» ما وویل :نیمه بر خه خیرات کړم؟ هغه صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «نه" بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «د دریوو نه یوه بر خه ور کړه او دا هم ډیره زیاته ده، که چیرې ته خپل وارثان شتمن پرېږدې دا غوره ده له دېنه چې تنګ لاسي یې پرېږدې خلکو ته یې د سوال لپاره لاسونه نیولي وي . ته هیڅ یو خیرات د الله تعالی د رضا لپاره نه کوې مګر دا چې په مقابل کې یې بدله در کول کیږي، ان تر دې چې کوم خوراک د میرمن په خوله کې ږدې (په هغه هم اجر در کول کیږي)

لیث بن سعد د مصر سترو فقهاءو څخه دی تل به یې خیرات کولو . کلنی عائد یې څلور سوه زره درهمه وه . خو هیڅکله یې نه پریښود چې زکات یې په مال پورې ونښلي. آیا ته پوهیږې « کلنی عائد یې څلور سوه زره درهمه وه خو هیڅکله یې زکات په مال کې رانغی ' یعني څه؟

زین العابدین بن حسین بن علی رحمه الله هره شپه له کور نه وتلو بوره، وریژې او نور خوراکونه به یې د بې وزلو خلکو کره کیښودل او بیر ته به راتلو، خلک له دې کار سره عادت شوي وه ویل به یې: نه پوهیږو چې څوک زمونږ په کورونو کې خوراکونه ږدي . کله چې زین العابدین وفات شو د دوی په کورونو کې نور خوراکي شیان کیښودل بند شول، په دې سره پوه شول چې دا کار خو زین العابدین کولو . کله چې خلکو وغوښتل هغه ته غسل ور کړي ګوري چې څټ سره یې ژور زخم دی او داله دې امله چې بې اندازې خوراکونه به یې په اوږو باندې د بې وزلو کره وړل..

ته چیر ته یې او هغوی چیر ته وه ؟ ! آیا ته به هم خیرات ور کړې؟ او که به همداسې بخیل پاتې شې ؟

ای ځوانانو ! ای کوچنیانو ! ای مشرانو ! ای ښځو ! او ای شتمنو ټول انفاق وکړئ، د مالونو څه بر خه مو د الله تعالی په لاره کې ور کړئ، نیستمنو، بې وزلو او اړو خلکو ته صدقه ور کړئ.

عبدالله بن عمر رضی الله عنه به له دې ایت (لَن تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ) [ال عمران: ۹۲]

" تاسې هیڅکله بشپړه نیکي نه شئ تر لاسه کولای تر څو مو د خپلې خوښې مال خیرات کړی نه وي " ډیره مینه کوله . ته پوهیږې چې څه به یې کول ؟هغو شیانو پسې به تلو چې ډیر به یې خوښول هغه به یې د

الله تعالی په لاره کې خیراتولو. یو ځل په یوه اوښه باندې سپور وه، دااوښه یې خوښه شوه، له هغې نه راښکته شو په نیمه لاره کې یوه څنګ ته اودرید، او د دې په انتظار وه چې یو کمزوري پیاده کس راشي ترڅو دااوښه هغه ته ور کړي، تر دې چې یو سپین ږیری کس راورسید، هغه ته یې وویل: ای وروره! په دې سپور شه دا ستامال دی.

نافع وایي: ابن عمر رضی الله عنه ناروغ شو، زړه یې انګورو ته وشو، کله چې انګور بازار ته راورسیدل بنځې یې یو کس د یوه درهم سره بازار ته ولیږه ترڅو هغه ته یو واښکی انګور راوړي. په دې کس پسې یو سوالګر روان شو. کله چې کور ته بیرته راغی وې ویل: خیر ګر دی! خیر ګر! ابن عمر رضی الله عنه وفرمایل: داواښکی هغه ته ور کړئ. بنځې یې یو بل درهم ور کړ. بیاهماغه سوالګر ورپسې شو کله چې هغه کس کور ته راغی، وې ویل خیر ګر دی! خیر ګر! ابن عمر رضی الله عنه وفرمایل: هغه ته یې ور کړئ. دا واښکی یې هم هغه ته ور کړ، صفیه (رضی الله عنها) هغه خیر ګر ته خبر ولیږه چې قسم په الله تعالی که دا ځل بیا راغلې هیڅ ګټه به زماله پلوه در ونه رسیږي. بیا یې یو بل درهم ور کړ په هغه یې یو واښکی انګور واخیسته.

خورې سوچ وکړه! کله چې ته خپل بچې ته څه خواړه ور کوې، هغه ته وایې: فکر کوه چې په مکتب کې یې در سره ماشومان ونه ویني پټ یې وخوره، تل ور ته نصیحت کوې: ځان ته دې فکر کوه هم صنفیان دې در نه څه وانخلي. همدا ډول نورې خبرې.....

ورونو داسې نه ده! کله چې خپل بچیان روزئ د ایثار (قربانۍ) مینه پکې پیدا کړئ. منه راوړه څلور ټوټې یې کړه ور ته ووایه: بچیه! یوه ټوټه پخپله وخوره او نورې ملګرو ته ور کړه، اسلام دغسې وي.

علي رضی الله عنه فرمایي: زید بن حارثه رضی الله عنه مکې ته ولاړ د حمزه رضی الله عنه لور یې ځان سره راوړه، جعفر رضی الله عنه وویل: زه یې اخلم، زه یې د سرپرستۍ وړ یم، ځکه دا نجلۍ زما وریره ده، خاله یې زما ښځه ده او خاله هم د مور په ځای وي. علي رضی الله عنه وفرمایل: زه یې د سرپرستۍ وړ یم، ځکه زما وریره ده او د رسول الله صلی الله علیه وسلم لور زما میرمن ده ډیره د دې وړ ده چې له هغې سره واوسیږي. زید رضی الله عنه وفرمایل: زه یې د سرپرستۍ وړ یم، ځکه زه ولاړم سفر مې وکړ او هغه مې راوړه، رسول الله صلی الله علیه وسلم راووت په موضوع پوه شو وې فرمایل: نجلۍ به د جعفر رضی الله عنه په سرپرستۍ کې وي ترڅو یې له خاله سره واوسي، ځکه خاله د مور په ځای وي.» [ابوداؤد]

ګورئ د رسول الله صلی الله علیه وسلم درې صحابه څنګه یو بل سره مسابقه کوي، چې کوم یو په دوی کې د دې نجلۍ سرپرستي په غاړه واخلي، او دا درې کسان هم یو له بل نه ډیر نیستمن دي، دا په داسې حال کې چې ستاورور مړ شوی او ستاو راره بې سرپرسته دی او ته یې مسؤلیت په غاړه نه اخلې اهمیت نه ور کوې! مور دې سپین سرې او بې وسه ده ته خواړه ور ته نه برابروې، ته او ستاورونه هغې ته نه ګورئ! کوم یو به یې په تاسې کې خپل ځان سره کور

ته بوځي، په مقابل کې مو، میرمنې وايي: همداد خپلو بچیو روزنه بس ده.

ستابخل تر دې ځایه رسیدلی، هغه هم له چا سره ؟ له خپلې مور سره چې ته یې راغټ کړې او ستا لپاره یې کړاوونه تیر کړل او داسې نورې رنګارنګ سختیانې یې تیرې کړې.

ورونو! موږ په داسې دور کې شپې تیروو چې دنیاله فقر، نیستی او بې وزلۍ څخه ډکه ده، له دې سره سره موږ ور ته اهمیت نه ور کوو حر کت نه کوو؟! هغه مسلمان چې د مسلمانانو چارو ته اهمیت ور کوي له دې وضعیت نه یې زړه په لړزان دی .

پوه شه چې ښکلې صدقه داده چې د ښکاره او پټې تر منځ تعادل وساتې، ګومان مه کوه چې الله تعالی یوازې پټه صدقه قبلوي او بس. الله تعالی فرمايي: )الذين ينفقون أموالهم بالليل والنهار سرا وعلانية فلهم أجرهم عند ربهم ولا خوف عليهم ولا هم يحزنون)[البقره: ۲۷۴]

"هغو کسانو ته چې خپل مالونه شپه او ورځ پټ او ښکاره د الله تعالی په لاره کې مصرفوي د هغوی د رب په وړاندې پوره اجر او ثواب دی . نه به پرې ډار وي او نه به غمژن کیږي"

په ښکاره باندې خیرات ور کول هم مطلوب دي تر څو خلک تحریک شي او د تقلید روح یې را اوچت شي، خو ولې په پټه خیرات ور کول د الله تعالی په وړاندې ډیر غوره دی، ولې ؟ ځکه له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل» : سبعة يظلهم الله في ظله يوم لا ظل إلا ظله : الإمام العادل، وشاب نشأ في عبادة ربه، ورجل قلبه معلق في المساجد، ورجلان تحابا في الله، اجتمعا عليه وتفرقا عليه، ورجل طلبته امرأة ذات منصب وجمال، فقال إني أخاف الله، ورجل تصدق أخفى حتى لا تعلم شماله ما تنفق يمينه، ورجل ذكر الله خاليا ففاضت عيناه»[رواه البخاري[

"اوه کسان دي چې الله تعالی به یې په ورځ د قیامت خپل سیوري لاندې اودروي، هغه ورځ چې پر ته د هغه د رحمت د سیوري نه به بل سیوری نه وي.

عادل بادشاه، هغه ځوان چې د خپل پرور دګار په عبادت کې رالوی شوی، هغه کس چې زړه یې د جومات سره تړلی وي ، دوه هغه کسان چې خپل منځ کې د الله جل جلاله د رضا لپاره سره یو ځای کیږي او د الله جل جلاله په خاطر یو بل نه جدا کیږي ، او هغه کس چې د ښائست او منصب والا ښځه یې ځان ته د زنا لپاره وغواړي او هغه ور ته ووايي چې زه د الله جل جلاله نه ویریږم ، او هغه کس چې صدقه دومره پټه ور کوي چې چپ لاس یې پرې نه پوهیږي چې ښي لاس یې څه صدقه کړل او هغه کس چې ځانته ځای کې الله جل جلاله یادوي او ستر ګو نه یې اوښکې بهیږي" کوم کس له موږ نه خوشحاله نه دی چې په ورځ د قیامت به د الله تعالی د عرش د سیوري لاندې اودریږي ؟!

(د "هدایت" له کتاب څخه)

# دشهید مولوي حکمت الله شاکر صاحب

## ژوند ته لنډه کتنه

حافظ سعید

د توري او قلم څښتن شهید مولوي حکمت الله شاکر صاحب دحاجي فضل محمد اکازوی، په ۱۳۶۰هش، کال د کندهار ولایت دپنجوایي ولسوالۍ دناخوني په کلي کې دې فاني نړۍ ته ستر ګې پر انیستلې دي .

**تعلیم اوزده کړه یې :**

پر افغانستان دسرو لښکرو دیرغل له امله دنورو هیوادوالو په څېر دشهید مولوي حکمت الله صاحب کورنۍ هم پاکستان ته هجرت وکړ اودبلوچستان ایالت دپنجپایي دافغان مهاجرو په پنډ غالي کې یې دهجرت ژوند پیل کړ .شهید مولوي حکمت الله صاحب خپلې لومړنۍ زده کړې دپنجپایي دمهاجرو په کمپ کې شروع کړې اودخپل مشر ورور مولوي صلاح الدین صاحب تر سپرستۍ لاندي یې په مختلفومدرسو کې له بیلابیلواستادانو څخه علمي اوروحاني فیض حاصل کړ.

داسلامي انقلاب تر بریالیتوب وروسته دشهید مو لوي صاحب کورنۍ خپل وطن ته کوچ وکړ اوپه ډیر تاسف سره لکه څنګه چې لوستونکي خبر دي جاه طلبومجاهدینو دچوکۍ پر سر خپل منځي جګړې پیل کړې او د کونډو، یتیمانواوټول افغان ولس سپیڅلي ارمانونه اوامیدونه یې له خاورو سره خاوري کړل ، وروسته چې کله دټوپکسالارانواوپاټکسالارانو پر ضد دطالبانواسلامي غورځنګ په کندهار کې راپورته شو،افغان مظلوم ولس داسلامي تحریک څخه ځاني اومالي ملاتړ اعلان کړ اوهر اړخیزي مرستې یې ورسره وکړې ، دخلکو ددې پراخې همکارۍ اودتحریک دمشر تابه داخلاص په برکت څښتن تعالی په لنډ وخت کې د ګران هیواد څخه دشر اوفساد کرغیړن ټغر ټول کړ اوپر ۹۵فیصده خاوره شرعي اوملي نظام حاکم شو .

اسلامي امارت په هيواد کي دعدالت اوامنيت دتطبيق اوتامين څخه وروسته دتعليم پر مختګ اووسعت ته ډېره زياته توجه وکړه اودهيواد په لر اوبر کي يې په سلهاوو ديني مدرسې جوړې کړې چي ښه کافي امکانات يې ور ته برابر کړي وو، شهيد شاکر صاحب هماغه مهال دکندهار ولايت په بيلابيلو مدرسو کي دديني تعليمي مروج نصاب دفنونو څخه فارغ شو، پر افغانستان دصليبي يرغل څخه وروسته شهيد شاکر صاحب دبلوچستان ايالت په کوټه ښار کي دمولوي عبدالرؤف صاحب سره دوه دوه وکړه اودچمن په سرحدي ښار ګوټي کي يې دشيخ الحديث والتفسير مولوي محمد علي (رح) سره دمبارکو احاديثولويه دوره وکړه اودفضيلت دستار يې پر سر کړ.

### خضوع ،اخلاق اوتقوى يې :

شهيدمولوي حکمت الله تقبله الله ډېر خاکسار انسان و، هيڅکله يې خپل ځان پر نورو خلکو که څه هم کمزوري کسان به وو، غوره نه ګاڼه، دملګروسره يې به ډېر ورين تندي خبري کولې او کله ناکله به يې مباح ټوکي ټکالي هم ورسره بدرګه کولې ،دجماعت دلمانځه ډېره پابندي يې کوله اودتهجداواشراق لمونځ يې په اهتمام سره اداء کاوه ،په قول اوعمل کي يې يووالى موجودؤ، کومه خبره چي به يې کوله په عملي ډګر کي يې په هغې خبري پوره عمل کاوه. دغيبت د مهلکي اوساري ناروغۍ څخه چي په ډېر تاسف سره په حاضر وخت کي عوام اوحتى ځيني خواص په مبتلا دي، يوازيني شخص چي ما (ددې کرښوليکوال) ملګر تياور سره کړې ده، هغه شهيدمولوي صاحب ؤچي تر ډېره زياته حده له همدې ناروغۍ څخه په امن اومحفوظ و، شهيد مولوي صاحب نه يوازې داچي خپله غيبت نه کاوه ،بلکي نور خلګ يې هم دغيبت څخه منع کول.

شهيد مولوي صاحب به دخپلو ورونو ،ملګرواو هيوادوالوسره دروحاني امراضو څخه دځان ساتني اوعلاج خوراپه زړه پوري نسخې وړاندې کولې ،دغيبت ،درواغو، تکبر ،عجب ،بخل اوبد ګومانۍ دنيوي اواخروي زيانونه به يې دعقل اونقل په رڼا کي تشريح کول. شهيد مولوي صاحب که څه هم دعمر په لحاظ کشر ؤ، خوخشيت اوتقوى يې دومره ډېره وه چي سپين ږيرواستادانوبه يې ښه اخلاق ،عاجزي اوپرهيزګاري په مجالسو کي دمثال په توګه ذکر کوله.

### لساني او قلمي جهاد يې :

شهيد مولوي صاحب دبشريت دلارښود اوناجي حضرت محمدمصطفى صلى الله عليه وسلم دهغه مبارک حديث چي فرمايي :(ان المؤمن يجاهدبسيفه ولسانه) په عملي کولوسره دوسله وال جهاد تر څنګ لساني اوقلمي جهادهم کاوه، نوموړي به په عامو اوخصوصي مجالسو کي دجهاد دفرضيت او فضيلت په اړه بيانونه اوبحثونه کول، مجاهدين به يې ستايل او د ستر ښښتن له خوادورسره شوو ژمنو يادونه به يې کوله، خوورسره به يې مجاهدين داختلاف ،خيانت،نه اطاعت،بد ګومانۍ او نورو ناوړه اعمالوله دنيوي زيانونو او اخروي وعيدونه څخه هم خبرول.

شهيد مولوي حکمت الله شاکر صاحب د« مرغوب المجاهدين »په نوم کتاب تأليف کړ ،په يادشوي

کتاب کي دجهاد فرضیت،دامیر اطاعت او دجهاد اړوند مختلف مسایل اوفضایل دقران شریف، مبار کواحادیثو، نبوي اصحابو،مجتهدینو اوسلفو صالحینو داقوالو په رڼا کي تشریح شوي دي،شهید شاکر صاحب همدغه کتاب یوه ملګري ته سپارلی ؤ، اوله هغه څخه دجهادي اضطراري حالاتوله امله نادر که شوی و، په دې وروستیو کي مرغوب المجاهدین د شهید مؤلف ورور مفتي احسان الله مظهري صاحب ترلاسه کړ او دنیکه مرغه سږ. کال همدغه کتاب (موغوب المجاهدین) دچاپ په ګېڼه وپسولل شو او دلوستونکو استفادې ته وړاندي شو.

**فزیکي جهادي خدمت او شهادت یې :**

شهید مولوي حکمت الله شاکر صاحب دصلیبي یرغلګرواودهغوی دګوډاګیانوپر ضددزابل او کندهار ولایت په مختلفو سیمو کي جهادي خدمتونه تر سره کړي دي ، دجهاد په لومړیو کي دووواره زابل ولایت ته ولاړ اوهلته یې دجهاد فریضه ادا کړه ، شهیدمولوي صاحب د کندهار ولایت په مختلفو سیمو کي جهادي خدمت ترسره کړی دی،نوموړی دژړۍ ولسوالی په پاشمول کلي کي سخت ټپي شو، ترعلاج اوجوړېدو وروسته بیر ته په ډیره لیوالتیاسره دجګړې لومړۍ کربښي ته ستون شو.

د۲۰۰۸،میلادي کال داګست په میاشت کي وحشي اشغالګرواوداخلي مزدورانوپې دژړۍ ولسوالۍ دپاشمول پر سیمه دلویو عملیاتواعلان وکړ، خو کله چي یرغلګرو څواکونواوداخلي لاسپوڅوپې دهوایي اومځکنیو قواووپه توسط پر پاشمول حمله وکړه ،دقهرمانومجاهدینو دسخت مقاومت سره مخامخ شول ، مجاهدینو پر خارجي اودخلي دښمنانودخرپ اوترپ بې شمیره بریدونه تر سره کړل اودماینونوپه انفجاراتو سره یې ډیري کاناډایي اوامریکایي مندي بوري کړې ، یرغلګرودزیاتومالي اوځاني زیانونوپه لیدلوسره پر پاشمول او ورځپر مه سیمو باندي داسي وحشیانه بمباری پیل کړې چي له امله یې دمجاهدینو تر څنګ ولسي خلکو ته هم دسر زیان واوښت اوهم یې حیواناتو اونباتاتو ته درانه تاوانونه ورسیدل .

په دې جګړه کي لکه مخکي چي اشاره ور ته شوه څوشاه زلمیومجاهدینو دخپل رب سره کړې ژمنه پوره کړه اوخپل سرونه یې دهغه لایزال ذات جل جلاله درضاء په موخه نذرانه کړل .هو! دهمدې نیکمرغو له جملې څخه یوهم شهیدمولوي حکمت الله شاکر صاحب ؤ،چي د۲۰۰۸میلادي داګست په ۲۰مه مطابق ۱۴۲۹هق ،دبرات په ۱۹مه نیټه یې داجل داعي ته لبیک وواېه او زموږ داسمان له مدار څخه دشهاب ثاقب غوندي دشیطانانو پر ټولی راولوید. اناالله وانا الیه راجعون !.

په یاده شوې جګړه کي دیر غلګرو څواکونو دانتهايي وحشت او بربریت له کبله مجاهدینودپاشمول څخه عقب نشیني وکړه، دشهیدشاکر صاحب جسدخو روځې هلته پاته شو، وروسته بیا خپل کلي (ناخوني) ته انتقال اوهلته دفن شو.

روح یې ښاد او یاد یې تاند

# د اتل شهید مولوي اختر محمد

# لنډ ژوندلیک

بیشکه د اسلامي او افغاني تاریخ په پاڼوکې ډېرو اتلانو کیسې او کارنامې خوندي دي، دکومو لوستل چې د سړي ایماني ولولې اوجذبې په جوش راولي او د پېړ-یو پیړې تېرېدو وروسته هم دهغوی حماسې ژوندۍ اوکارنامې یې تازه پاته دي ولسونه اوقومونه پرې ویاړي.

هو !دتاریخ دغسي ځلېدلي ستوري که هرڅو د جعرافیې یا سیمې له پلوه کوم خاص هېواد ،قوم یا کومې سیمې ته منسوب دي،خو پر ویاړلو کارنامو یې ټول ویاړي ، چې دهمد غسي اتلانو اوقهرمانانو له ډلې څخه یو ځوان عالم ،لیکوال، شاعر،او مجاهد شهید مولانا اختر محمدزاهد (رحمه الله ) هم و.

هاغه اختر... چې د کوچني اختر په شپه دې نېمګړې نړۍ ته راغلی و او بېرته هم دکوچني اختر په شپه لاړ.

مفتون صیب دشهادت په ویر کې یې څومره ښه ویلي:

روژه مې په خوله پاتې شوه کوثر دې رانه واخېست.دا

څرنګه اختروې چې اختر دې رانه واخېست اختره زمونږ هېلې دې کړې خاورو سره خاورې.سېنه دې کړه راماته دزړه سر دې رانه واخېست

ریوبه !ښاپسته یې خوبس ماته کنعان ښکارې.یوسف دې رانه ویوړو نظر دې رانه واخېست اوتر اوتر مې څکه دنظر بوراګان ګرځي.خزانه !ها دګل په شان بشر دې رانه

واخېست وطن دې رابدرنګ کړ؛شي خزان غربي خزانه ! چېنار دې رانه واخېست او نښتردې رانه واخېست ظالمه !معاف کېدل دې په يوه صورت هم نشته -چې ډک و له فکرونو هغه سر دې رانه واخېست زړګی مې درته څکه سوې سوې ښېرې کاندې -بېتلونه دزاهدغوندې دلبر دې رانه واخېست لا نور به څه ترخه راوړې (مفتون) ته انقلابه-چې باز ددنګو غرونو دسپين غر دې رانه واخېست زوکړه يې:

دپوهې اوکمال دغه ځليدونکی ستوری دغوايي کمونستي کودتانه يوکال وروسته په ۱۳۹۸هـق کال دکوچني اختر په مبارکه شپه چې د۱۳۵۸ل کال دپينځمې مياشتې دلسمې نېټې سره سمون خوري ، دپکتيا ولايت ،اريوب ځاځيو دښېرازې ولسوالۍ هاشم خېلو د ملافاتح په کلي کې دحاجي سلطان محمد کره راختلی و.دهجرت ټاټوبه يې:

هغه مهال چې دافغانستان په سپېځلې خاوره دروسي وحشي لښکرو ظالمانه يرغلوشو ، اوپرضديې دافغان مجاهدولس لخوا په کلک عزم جهاد پيل شو. او له هېواده دهجرت ديار( پاکستان) په لور دهجرتونو قافلې و کوچېدې داخترمحمد دغه مهال کوچنی و ، دهغه کورنۍ هم دنورو مهاجرو کورنيو سره يوځای د خيبر پښتونخوا ايالت دټل خپيانګې پنډغالي ته لاړه، اخترمحمد دخپل کوچنيوالي زمانه په همدې پنډ غالي کې تيره کړه، طبعيت يې له نورو ماشومانو نه ډېر بدل و ، دبې ځايه ګرځيدو او عبثو کارونو سره يې نه وه جوړه او په ټنډه کې يې له ورايه دزيرکتيا او ذهانت نښې پېژندل کېده.

زده کړې يې:

لومړۍ زده کړې يې دخپل تره معلم حاجي خېرمحمد نه پيل کړې ، په شپږ کلنۍ کې دابتدايي زده کړو بشپړولو په موخه دخپيانګې په ښوونځي کې شامل کړای شو ،هلته ترشپږم ټولګي زده کړو کولو دولس کلن و چې د نورو زده کړو لپاره له کوره ووت ، دصرف نحوې ،فقهې ،تفسير، اصول ، عقايد ، کلام ، منطق ،حکمت ،فلسفې، اونورو علومو کتابونه يې په بېلابېلو مدرسوکې (لکه: ټل ،پکتيا ، خوست ،ننګرهار،پېښور، صوابۍ کوهاټ اوزرګري )کې ولوستل ددې ترڅنګ يې عصري علوم(ساينس، حفرافيه ،فزيک ،رياضي ،اجتماعيات ،تاريخ،پښتو...) هم دمختلفو مسلکي استاذانو نه ويلي. دفنونو وروسته د حديثو وړه دوره او بيا لويه دوره يې د ټل په دارالعلوم العربيه کې ولوستې، دلويې دورې استاد يې شيخ الحديث

مولانا معزالحق رحمه الله و او د هم هغه په لاس ورته دفضیلت پګړۍ ورپه سرشوه.

مشهور استاذان یې:

مولانا سید قریش بابا رح، مولانا معزالحق رح، مولانا فضل الرحمن پکتیاوال رح، قاضي محمد امین مدظله ،دکتور مولانا ګل الرحمن حقاني مدظله ،مفتي محمد سردار مدظله ،مولانا نور سعید سعید ،مدظله او د مولانا محمد زاهد عزیزخیل مدظله نومونه دیادولو وړدي.

مفسر او شیخ الحدیث مولانا ګل الرحمن حقاني المدني دنوموړي په اړه وایي: مولانا اخترمحمد زاهد زما په ټولو شاګردانو کې یو حساس او هوښیار شاګرد و ، چې دعلم ترڅنګ دسیاست او اجتماعي صفاتو نه هم برخمن و ، ما تري دزیاتو دیني اوملي خدمتونو هیلې درلودې ،خو الله تعالی ته دا خوښه وه چې دبصیرت ،تقوا ،عرفان او کمال دغه ستوری یې دفاني دنیا نه ابدي دنیا ته ژر و غوښت

تدریس یې:

شهید اخترمحمد رحمه الله دعلومونه دفراغت په اول کال(۲۰۰۲ز) دټل ښـډورو په مفتاح القرآن مدرسه کې د پنځمې درجې کتابونه تدریس کړل ،وروسې درې کاله یې دټل په عمریه مدرسه او داریوب ځاځیو کوټکي په جامعه خالدبن ولید کې او دملافاتح کلي په جامعه سراج العلوم او دکرم ایجنسۍ په مدرسو کې یې تروړې دورې کتابونه تدریس کړل

ومورې په علمي او جهادي مفکوره دمدرسو او لیسو شاګرادنو ګډې روزنې ته ډېر ارزښت ورکاو او شپه ورځ په دې هڅه او هاند کې وه ،چې داسې کسانو تربیه شي چې هغوی دعصري او دیني دواړو علومو نه خبروي، په دې وجه دنوموړي شاګردان نه یوازې ښه تکړه طالبان یا عالمان دي، بلکې فعال مجاهدین هم دي، دتدریس سربیره دټل په ټنډرو سیمه کې د خپلو شاګردانو او ملګرو په مرسته د مفتاح القرآن په نامه مدرسه هم جوړه کړه، کومه چې ځلور خونې او یوه د حفظ درسګاه لري. دیادونې وړده، چې داکار نوموړي هغه مهال کړی و چې کله خپله دشرح جامي طالب و ، د سهارله خوا به یې دټل په دارالعلوم کې سبق وایه او دماسپښین د تکرارنه به چې فارغ شو د اشاګردانو اوملګرو یوځای به یې ختې کولې.

او دا هغه مدرسه ده چې د **۱۴۳۵**هق دمحرم میاشتې په ۱۳مه دامریکایانو لخوا ورباندې د څلورو ډرون توغندیو برید وشو او پکې یې مولوي احمدجان غزنوي ، مولوي حمیدالله ،مولوي ګل مرجان ،قاري

عبدالرحمن او قاري نورولي شاه شهيدان کړل په ۲۰۰۳م کې يې دخپلو ملګرو په کومک داريوب ځائيو دکوټکيو په سېمه کې يې دخالد بن وليد په نامه مدرسه ودانه کړه اوپه کې درې خونې يې جوړې کړې، چې دوخت په تېرېدو بيا مولوي سعيد پسې لاپراخه او په عصري اسبابو مجهزه کړه. په ۲۰۰۴م کال کې يې دروکيان ملافاتح دارالیتام په نامه مدرسه چې ځوکاله شاړه پرته وه بيرته ورغوله او ورته سراج العلوم نوم يې کيښود.

ديوالي سيمبول:

شهيداخترمحمد رحمه الله چ يو بې ريا خادم او دعلمي ،جهادي او سياسي فکر او عمل نه برخمن ځوان و. ددرس او تدريس ترڅنګ دامريکايي اشغالګرو په مقابل کې دجهاد دګرمو سنګرونو يو زړور مجاهد و، چې هروخت يې پکې ګډون کاو او دمجاهدينو دوحدت او خېرخواهۍ سيمبول و ، دځائيو له طالبانو نيولې ترولسي خلکو په ټولو مهربان او وربانديې د خپل پوهې او هوښيار اغېز يې کينولی و ،او هروخت به يې د مشرانو علماوو او قومي مخورو له مشورو اوخبرو نه څخه زياته ګټه پورته کوله.

نوموړی دخپلو لوړو حسنه اخلاقو په وجه دځائيو ځلورو ولسواليو طالبانو او مجاهدينو په زړونو کې يې داحترام ځای درلود ،ټول طالبان او مجاهدين ور باندې راټول وو او هر يو ه يې په ورين تندي خبره منله.

کوم څه به يې چې په خوله وهغه يې په زړه او عمل کې هم وو لکه پخپله شاعرانه ژبه وايي:

اتحاد لره قايل حاکم قرآن دی .اعتصام بحبل الله عظيم بيان دی ځانځاني لوی هلاکت او ورکيدل دي.اتحاد باندې قايم زمين اسمان دی دګبين مچيو جوړ چې اتحاد کړ.قدر وړ يې په هرځای کې لوی کاروان دی اتحاد ځينې اغيار واړه لړځېږي .اتفاق ته روعب ورکړی پاک سبحان دی متفق اشخاص که لږ وي ترې خطر وي .په نفاق باندې هر فرد ورک له ميدان دی اتحاد کې مشر کشر تعظيم کېږي.ځانځانی واله ذليل ګډ په نيران دی دخپل مشر اطاعت هم بيا واجب دی.دنبي (ص)په احاديثو کې عيان دی مسلمانو ! اتحاد باندې ملبوس شئ.داخترمحمد په زړه دغه ارمان دی څرنګه چې مولوي صيب دمقدس دين په نورو برخو (درس تدريس ،دعوت تبليغ او دجهادي ډګرونو )کې نوميالی و. هم داسې دظاهري علم ترزده کړې ورسته دباطن تزکيې او اصلاح په لړکې يې دتصوف لار نيولې وه، له مبالغې پرته وايم چې رښتينی زاهد و، ژبه به يې هروخت دالله

د ننگرهار ولایت داچین ولسوالۍ په عدل خېلو سیمه کې د سرحدي پولیسو پوسته تر برید لاندې راغله، د برید له امله دښمن ته د اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته.۰۶-۰۴-۲۰۱۵

**رودات ولسوالۍ په ودانۍ برید وشو**

د ننگرهار ولایت د رودات ولسوالۍ په ودانۍ وسلوال برید وشوچې په مهال یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۰۷-۰۴-۲۰۱۵

**سپین غر کې په پوسته برید، ۱ عسکر ووژل شو**

د ننگرهار ولایت په سپین غر ولسوالۍ په شډل پنډولا سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشوچې ۱ عسکر پکې ووژل شو. ۰۷-۰۴-۲۰۱۵

**کوټ کې ۱ رینجر تخریب او ۲ عسکر ووژل شول**

د ننگرهار ولایت دکوټ ولسوالۍ په چهاردهي سیمه کې د دښمن په پلیو عسکرو برید وشوچې ۲ عسکر پکې ووژل شول، همداراز په سیمه کې د دښمن په پوسته د نارنجکو برید وشوچې ۱ رینجر موټر پکې تخریب شو. ۲۰۱۵-۰۴-۰۷

**خوګیانو کې په پولیسو برید وشو**

د ننگرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ په چمتلي سیمه کې په سرحدي پولیسو برید وشوچې په مهال یې ۲ پولیس ټپیان شول. ۰۷-۰۴-۲۰۱۵

**شیرزادو کې عسکر مجاهدینو سره یو ځای شو**

د ننگرهار ولایت په شیرزادو ولسوالۍ کې یو عسکر حمدالله له مجاهدینو سره یو ځای شو. ۰۸-۰۴-۲۰۱۵

**غني خېلو کې ماین ۲ عسکر ټپیان کړل**

د ننگرهار ولایت د غني خېلو ولسوالۍ په مارکو بازار سیمه کې د دښمن په پلي گزمه چاودنه وشوه چې ۲ عسکر پکې ټپیان شول. ۰۸-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې ۴ عسکرو ته مرگ ژوبله واوښته**

د ننگرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ د بربهار او کوزبهار سیمو کې د دښمن په عسکرو بریدونه وشول، په بریدونو کې ۴ عسکرو ته مرگ ژوبله واوښته او نور له سیمې وتښتېدل. ۰۸-۰۴-۲۰۱۵

**کوټ کې ۲ پولیس ټپیان شول**

د ننگرهار ولایت د کوټ ولسوالۍ په تریلي سیمه کې په پولیسو برید ترسره شو، په برید کې ۲ پولیس ټپیان شول او نور وتښتېدل. ۰۹-۰۴-۲۰۱۵

**پچیراګام کې پولیس مجاهدینو سره یو ځای شو**

د ننگرهار ولایت د پچیراګام ولسوالۍ په پاس صبر سیمه کې یو تن پولیس عبدالله له مجاهدینو سره یو ځای شو.۰۹-۰۴-۲۰۱۵

**سپین غر کې په ۲ پوستو بریدونه وشول**

د ننگرهار ولایت د سپین غر ولسوالۍ په کوشتل سیمه کې د اربکیانو په پوسته برید وشوچې ۱ اربکی پکې ووژل شو، دغه راز په شډل پنډولا سیمه کې په پوسته برید ترسره شوچې په ترځ کې یې ودانۍ ته په زیان اوښتو سربېره عسکرو ته مرگ ژوبله هم واوښته.۰۹-۰۴-۲۰۱۵

**اچین کې په ۲ پوستو برید وشو**

د ننگرهار ولایت د اچین ولسوالۍ په عدل خېلو سیمه کې د دښمن په ۲ پوستو بریدونه وشول، د بریدونو له امله دښمن ته د اوښتي زیان په هکله شواهد نه دي ترلاسه شوي.۰۹-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې په پوسته برید، ۱۵ پولیسو ته مرگ ژوبله واوښته**

د ننگرهار ولایت دخوګیانو ولسوالۍ په مملي قیوم خېلو سیمه کې د نظم عامه په پوسته برید وشو، د برید په مهال د پوستې ودانۍ ته د ځای په ځای شوي ماین درنه چاودنه هم وشوه، په برید کې ۱۵ پولیسو ته مرگ ژوبله واوښته او د پوستې ودانۍ تخریب شوه. ۱۰-۰۴-۲۰۱۵

**سرخرود کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د ننگرهار ولایت د سرخرود ولسوالۍ په خیراباد سیمه کې د دښمن پوسته د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، د برید له امله دښمن ته د اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۱۰-۰۴-۲۰۱۵

**جلال اباد کې په کاروان فدایي برید ۲ ټانکونه ویجاړ کړل**

د ننگرهار ولایت د جلال اباد ښار په اړونده سیمه کې د هوایي اډې اولې دروازې ته نژدې د اشغالګرو امریکایي عسکرو په یوځي کاروان د فدایي مجاهد جواد کندهاري له خوا د موټر په توسط فدایي برید ترسره شو، د برید له امله ۲ غټ زغروال ټانکونه په بشپړه توګه وسوزېدل او پکې ناست امریکایي عسکر هم د لمبو خوراک شول. ۱۰-۰۴-۲۰۱۵

**غني خېلو کې پوسته فتحه او ۴ عسکر ووژل شول**

د ننگرهار ولایت دغني خېلو ولسوالۍ په ودانۍ او ودانۍ ته په نژدې پوسته او دغه راز په شپږم کنډک په یو وخت وسلوال بریدونه ترسره شول، په برید کې یوه پوسته فتحه، ۴ عسکر مړه، ګڼ نور ټپیان شول او یو شمېر وسله مجاهدینو ته په لاس ورغلې، وروسته سیمې ته کومکي عسکر راغلل چې د مجاهدینو له کمین سره مخ شول، په دې برید کې ۱ ټانګ تخریب او ۵ پولیسو ته مرگ ژوبله واوښته. ۱۰-۰۴-۲۰۱۵

**شیرزادو ولسوالۍ ودانۍ په هاوان وویشتل شوه**

د ننگرهار ولایت د شیرزادو ولسوالۍ ودانۍ د هاوان په ۸ مرمیو دقیق وویشتل شوه چې له امله یې دښمن ته زیان واوښت. ۱۰-۰۴-۲۰۱۵

## بټي کوټ کې ۳ اربکیانو ته مرګ ژوبله واوښته

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ سرګردان چوک پوستې ته نژدې په اربکیانو برید ترسره شو، په برید کې ۱ اربکی ووژل شو او ۲ نور ټپیان شول. ۱۰-۰۴-۲۰۱۵

## اچین کې په ۲ پوستو بریدونه وشول

د ننګرهار ولایت د اچین ولسوالۍ په عدل خېلو سیمه کې د سرحدي پولیسو او اربکیانو په ۲ پوستو بریدونه وشول، د بریدونو له امله ودانۍ زیانمنې شوې او د مرګ ژوبلې په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۱۰-۰۴-۲۰۱۵

## خوګیانو کې په پوسته برید وشو

د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ د وزیرو د دوسر کې په پوسته برید ترسره شو، د برید له امله ودانۍ ته زیان اوښتی او د مرګ ژوبلې کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۱۱-۰۴-۲۰۱۵

## اچین کې عسکر مجاهدینو سره یوځای شو

د ننګرهار ولایت په اچین ولسوالۍ کې ۱ عسکر سیف الله له مجاهدینو سره یوځای شو. ۱۱-۰۴-۲۰۱۵

## رودات کې پوسته تر برید لاندې راغله

د ننګرهار ولایت د رودات ولسوالۍ په ییوي کنډو سیمه کې د مزدوري اردو په پوسته برید وشو چې په ترڅ کې یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۱۱-۰۴-۲۰۱۵

## پچیراګام کې د دښمن په ګزمه برید شوی

د ننګرهار ولایت د پچیر اګام ولسوالۍ په دوسرکه سیمه کې د دښمن په عسکرو برید وشو چې په مهال یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۱۱-۰۴-۲۰۱۵

## سپین غر کې پوسته تر برید لاندې راغله

د ننګرهار ولایت د سپین غر ولسوالۍ په کوشتل سیمه کې د دښمن پوسته تر برید لاندې راغله. د برید له امله ۲ عسکر ټپیان شول او ودانۍ هم زیانمنه شوه. ۱۱-۰۴-۲۰۱۵

## خوګیانو کې نفوذي مجاهد د پوستې عسکر مسموم کړل

د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ د وزیرو په احمد خېلو سیمه کې یو تن نفوذي مجاهد د یوې پوستې اربکیان مسموم کړل، د پوستې له پاتې عسکرو سره نورو مجاهدینو جګړه وکړه چې بیا وروسته سیمې ته نور عسکر راغلل او مسموم او په جګړه کې ښکیل عسکر یې له سیمې وایستل، نفوذي مجاهد له ۱ پیکا، ۳ کلاشنکوفونو او تجهیزاتو سره له مجاهدینو سره یو ځای شو. ۱۱-۰۴-۲۰۱۵

## بټي کوټ کې په کاروان برید وشو

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ په فارم سیمه کې د مزدوري اردو په کاروان برید ترسره شو، د برید په ترڅ کې دښمن ته د اوښتي زیان په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۱۱-۰۴-۲۰۱۵

## حصارک کې پوسته تر برید لاندې راغله

د ننګرهار ولایت د حصارک ولسوالۍ په داود کلا کې د دښمن په پوسته برید وشو، د برید له امله دښمن ته اوښتي مرګ ژوبلي شمېره نه ده څرګنده شوې او ودانۍ ته پوره زیان واوښت. ۱۱-۰۴-۲۰۱۵

## خوګیانو کې ګوډاګی عسکر ووژل شو

د ننګرهار ولایت دخوګیانو ولسوالۍ د وزیرو په دوسرکه سیمه کې ۱ ګوډاګی عسکر ووژل شو. ۱۱-۰۴-۲۰۱۵

## سپین غر او اچین کې ۵ عسکر مجاهدینو سره یوځای شو

د ننګرهار ولایت په سپین غر ولسوالۍ کې ۲ عسکر (ایمل او عارف) او په اچین ولسوالۍ ۳ تنه عسکر (عمران، ممتاز ولي او تحویلدار) د جلب او جذب کمیسیون د هڅو په پایله کې له مجاهدینو سره یوځای شول. ۱۲-۰۴-۲۰۱۵

## سرخرود کې ماین د ۴ عسکرو ژوند واخیست

د ننګرهار ولایت د سرخرود ولسوالۍ په مارغونډۍ سیمه کې د مزدوري اردو په عسکرو درنه چاودنه وشوه، چاودني ۴ تنه عسکر ځای په ځای ووژل. ۱۲-۰۴-۲۰۱۵

## سرخرود کې پولیس په درازکوف وویشتل شو

د ننګرهار ولایت د سرخرود ولسوالۍ په خیرآباد سیمه کې ۱ پولیس په درازکوف وویشتل شو چې ځای په ځای قتل شو. ۱۲-۰۴-۲۰۱۵

## چپرهار کې ۲ اربکیان ووژل شول

د ننګرهار ولایت د چپرهار ولسوالۍ په ماڼو سیمه کې ۲ اربکیان د وسلوال برید په ترڅ کې ووژل شول. ۱۲-۰۴-۲۰۱۵

## خوګیانو کې مسموم شوي ۴ عسکر مړه شول

د ننګرهار ولایت په خوګیانو ولسوالۍ کې هغو مسمومو ۴ عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړ چې د اسلامي امارت د یو نفوذي مجاهد له خوا مسموم شوي وو، په مسموم شویو عسکرو کې ۱ ایلوني شوی او خپل دماغ یې له لاسه ورکړی. ۱۲-۰۴-۲۰۱۵

## پچیراګام کې پوسته تر برید لاندې راغله

د ننګرهار ولایت د پچیر اګام ولسوالۍ په شاکرینو سیمه کې د مزدوري اردو په پوسته برید وشو چې یکې مېشتو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۱۵-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې اربکی په درازکوف قتل شو**

د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ د مملي قیوم خېلو په پوسته کې ۱ اربکی په درازکوف وویشتل شو چې ځای پې ساور کړه. ۲۰۱۵-۰۴-۱۵

**سرخرود کې ۱ رینجر تخریب او ۳ پولیس ټپیان شول**

د ننګرهار ولایت د سرخرود ولسوالۍ په کوخک سیمه کې د پولیسو رینجر په ماین والوت چې پوره تخریب شو، وروسته په پلیو پولیسو بله چاودنه وشوه چې له امله یې ۳ پولیس مرګوني ټپیان شول، دغه راز په باولي سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته د اوښتي زیان په اړه معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۱۵-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو ولسوالۍ په ودانۍ برید، ۲ پولیس ووژل شول**

د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ په ودانۍ وسلوال برید ترسره شو، د برید له امله ودانۍ ته په زیان اوښتو سربېره ۲ پولیس ووژل شول او ۴ نور ټپیان شول. ۱۶-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې په عسکرو ماین وچاودېد**

د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ سراج دوکانو سیمه کې په پلیو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ عسکر ټپیان شول. ۱۶-۰۴-۲۰۱۵

**بټي کوټ کې اربکی قومندان کاتب شینواري ووژل شو**

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ مرکز ته نژدې اربکی قومندان کات شینواري د یو وسلوال برید په ترځ کې ووژل شو. ۱۶-۰۴-۲۰۱۵

**چپرهار کې ماین ۳ عسکر ووژل**

د ننګرهار ولایت د چپرهار ولسوالۍ په حافظانو سیمه کې د ښخ کړل شوي ماین چاودنې ۳ تنه عسکر ووژل او ۵ نور عسکر یې مرګوني ټپیان کړل. ۱۶-۰۴-۲۰۱۵

**شیوه کې ماین رینجر تخریب او ۱ پولیس ووژه**

د ننګرهار ولایت د شیوې ولسوالۍ په شګي سیمه کې د پولیسو رینجر موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر تخریب شو، ۱ پولیس مړ او ۳ ټپیان شول. ۱۶-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې په کنډک برید، ۴ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ په تعمیرغونډۍ سیمه کې د سرحدي پولیسو په کنډک برید ترسره شو، د برید له امله ودانۍ ته په زیان اوښتو سربېره ۴ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته. ۱۷-۰۴-۲۰۱۵

**پچیراګام کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د ننګرهار ولایت د پچیراګام ولسوالۍ په لیشکي سیمه کې د دښمن پوسته د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، د برید له امله دښمن ته اوښتو تلفاتو په هکله دقیق معلومات نشته. ۱۷-۰۴-۲۰۱۵

**لعلپوره کې ۲ ټانګونه تخریب او ۳ عسکر ووژل شول**

د ننګرهار ولایت د لعلپوره ولسوالۍ په فتح مېنه سیمه کې د مزدوري اردو په کاروان برید وشو، په برید کې ۳ عسکر قتل او ۴ نور ټپیان شول، په دې سربېره ۲ زغروال ټانګونه تخریب شول. ۱۷-۰۴-۲۰۱۵

**مهمندره کې رینجر تخریب او ۲ عسکر ووژل شول**

د ننګرهار ولایت د مهمندرې ولسوالۍ د شهید موړ سیمه کې د دښمن په ګزمه برید وشو، په برید کې ۲ عسکر قتل او ۳ نور ټپیان شول، په دې سربېره ۱ رینجر موټر هم تخریب شو. ۱۷-۰۴-۲۰۱۵

**بټي کوټ کې په کاروان برید وشو**

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ په فارم سی سیمه کې د دښمن په کاروان برید وشو چې په مهال یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۰۱۵-۰۴-۱۷

**پچیراګام کې ۲ پولیسو ژوند له لاسه ورکړ**

د ننګرهار ولایت د پچیراګام ولسوالۍ په لیشکي سیمه کې د وسلوال برید په مهال ۲ سرحدي پولیس هغه مهال ووژل شول چې خپلې پوستې ته اوبه وړلې، په برید کې یو شمېر پولیس ټپیان شول. ۱۷-۰۴-۲۰۱۵

**بټي کوټ ولسوالۍ په ودانۍ اوګزمه برید، ۶ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ په ودانۍ وسلوال برید وشو چې په مهال یې دښمن ته تلفات واوښتل، د یو بل خبر له مخې په فارم چهار سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو د وسلوال برید په ترځ کې ۲ عسکر مړه او ۴ نور ژوبل شول. ۱۸-۰۴-۲۰۱۵

**اچین کې رینجر په ماین والوت**

د ننګرهار ولایت د اچین ولسوالۍ په پیخي خوړ سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په رینجر موټر چاودنه وشوه، د چاودنې له امله رینجر تخریب او ۵ عسکر پکې ټپیان شول. ۱۸-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې ۳ عسکر ټپیان شول**

د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ د وزیرو په احمد خېلو سیمه کې سراج دوکانو ته نژدې په اربکیانو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ اربکیان مرګوني ټپیان شول، دغه راز په همدې احمدخېلو سیمه کې ۱ اربکی په درازکوف وویشتل شو چې سخت ټپي شو. ۱۹-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیاڼو کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د ننګرهار ولایت دخوګیاڼو ولسوالۍ د وزیرو په احمدخېلو سیمه کې د دښمن پوسته د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، د برید له امله دښمن ته د اوښتې زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۱۹-۰۴-۲۰۱۵

**بټي کوټ کې د پولیسو رینجر په ماین والوت**

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ په مربوطاتو کې د پولیسو په رینجر موټر چاودنه وشوه، چاودنې موټر تخریب کړ او ۳ پولیس یې ټپیان کړل. ۱۹-۰۴-۲۰۱۵

**سرخرود کې په ۲ پوستو بریدو، ۱ پولیس ووژل شو**

د ننګرهار ولایت د سرخرود ولسوالۍ په چهارکلا او باولۍ سیمو کې د دښمن په ۲ پوستو بریدونه ترسره شول، د بریدونو له امله ۱ پولیس ووژل شو او ودانیو ته هم پوره زیان واوښت. ۱۹-۰۴-۲۰۱۵

**کوټ کې چاودنو ۲ پولیس ووژل**

د ننګرهار ولایت د کوټ ولسوالۍ مرکز ته نژدې د پولیسو په ګزمو ۲ چاودنې وشوې چې له امله یې ۲ پولیس قتل او ۴ نور ژوبل شول. ۱۹-۰۴-۲۰۱۵

**اچین کې چاودنې ۱ ټانګ، ۱ رینجر تخریب او ۳ پولیس ووژل**

د ننګرهار ولایت د اچین ولسوالۍ په پیښي خوړ سیمه کې د پولیسو په ګزمه چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۱ ټانګ، ۱ رینجر تخریب شول، په دې سربېره ۳ پولیس ژوند له لاسه ورکړ او ۵ نور ژوبل شول. ۱۹-۰۴-۲۰۱۵

**کوټ کې د پولیسو رینجر په ماین والوت**

د ننګرهار ولایت د کوټ ولسوالۍ په تربلي سیمه کې د پولیسو په رینجر موټر چاودنه وشوه، د چاودنې له امله رینجر تخریب شو خو د مرګ ژوبلې کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۱۹-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیاڼو کې په پوسته برید وشو**

د ننګرهار ولایت دخوګیاڼو ولسوالۍ په مملي دروازګي سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته د اوښتې زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۲۰-۰۴-۲۰۱۵

**اچین کې په پوسته برید وشو**

د ننګرهار ولایت داچین ولسوالۍ په پیښي خوړ سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو، د برید له امله دښمن ته اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۲۰-۰۴-۲۰۱۵

**سپین غر کې ٦ عسکر مجاهدینو سره یو ځای شول**

د ننګرهار ولایت په سپین غر ولسوالۍ کې ٦تنه عسکر د جلب او جذب کمیسیون او سیمه ییزو مجاهدینو د هڅو په برکت له ګوډاګي اداري را جلا شول، په عسکرو کې تورات، نبی الرحمن، نور ولي، حکمت یار، حامد او ماهیپر شامل دي. ۲۰-۰۴-۲۰۱۵

**پچیراګام کې په ۲ پوستو برید، ۳ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د پچیراګام ولسوالۍ په شاکریانو سیمه کې په پوسته برید وشو چې په مهال یې ۲ عسکر ټپیان شول، دغه راز په بامه خېلو سیمه کې هم د دښمن په پوسته برید وشو چې ۱ عسکر پکې ووژل شو. ۲۱-۰۴-۲۰۱۵

**سرخرود کې ماین د ۲ پولیسو ژوند واخیست**

د ننګرهار ولایت دسرخرود ولسوالۍ په خیر اباد سیمه کې په هغو عسکرو چاودنه وشوه چې ماین یې خوندا کاوه، چاودنې ۲ پولیس ووژل او ۳ نور پولیس یې ټپیان کړل. ۲۱-۰۴-۲۰۱۵

**چپرهار کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د ننګرهار ولایت د چپرهار ولسوالۍ په ماړو سیمه کې د دښمن پوسته تر برید لاندې راغله. په برید کې دښمن ته د اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۲۱-۰۴-۲۰۱۵

**چپرهار کې ۴ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د چپرهار ولسوالۍ په ماړو سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو برید ترسره شو، په برید کې ۲ عسکر قتل او ۲ ټپیان شول. ۲۱-۰۴-۲۰۱۵

**پچیراګام کې په پوسته برید، قومندان قتل شو**

د ننګرهار ولایت د پچیراګام ولسوالۍ په بامه خېلوسیمه کې د دښمن پوسته د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، د برید له امله د پوستې قومندان ذاکر ووژل شو او ۱ پولیس ټپی شو. ۲۱-۰۴-۲۰۱۵

**اچین کې په اربکیانو ماین وچاودېد**

د ننګرهار ولایت د اچین ولسوالۍ په پیښي خوړ کې په اربکیانو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ اربکیان ژوبل شول. ۲۲-۰۴-۲۰۱۵

**بهسودو کې ماین د جاسوسي اداري څارنوال وژلی**

د ننګرهار ولایت د بهسودو ولسوالۍ په ۱۱مه ویاله کې په اصطلاح د ملي امنیت څارنوال حیدر د ښخ کړل شوي ماین په چاودنه کې ووژل شو، چاودنې د نوموړي کرولا موټر هم پوره تخریب کړ. ۲۲-۰۴-۲۰۱۵

**کامه کې ماین د ۲ پوستو قومندان او ۴ اربکیان ټپیان کړل**

د ننګرهار ولایت د کامې ولسوالۍ په زرشیو سیمه کې د قومندان خان ولي په موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې قومندان خان ولي او ۴ اربکیان ټپیان شول او موټر یې په مکمل ډول ویجاړ شو. ۲۲-۰۴-۲۰۱۵

**اچین کې ۴ عسکر مجاهدینو سره یو ځای شول**

د ننګرهار ولایت په اچین ولسوالۍ کې ۴ تنه عسکر د جلب او جذب کمیسیون د دعوت په پایله کې د اسلامي امارت د حقانیت په درک کولو سره له ګوډاګۍ اداري را جلا شول، په عسکرو کې غیبي شاه، رحمت الله، نوراغا او بازمحمد شامل دي. ۲۲-۰۴-۲۰۱۵

**ګوشتي کې اربکی په کره بین تویک وویشتل شو**

د ننګرهار ولایت د ګوشتي ولسوالۍ د خویزو په سیمه کې یو اربکی په کره بین ټوپک وویشتل شو چې مرګوني ټپي شو.۲۲-۰۴-۲۰۱۵

**پچیراګام کې اربکی په درازکوف قتل شو**

د ننګرهار ولایت د پچیراګام ولسوالۍ د پچیرتنګي په پوسته کې یو اربکی په دازکوف وویشتل شو چې ځای په ځای ووژل شو. ۲۳-۰۴-۲۰۱۵

**پچیراګام کې ۲ پولیس مجاهدینو سره یو ځای شول**

د ننګرهار ولایت په پچیراګام ولسوالۍ کې ۲ تنه پولیس هر یو شفیع الله او یارولي د جلب او جذب کمیسیون د دعوت په پایله کې له مجاهدینو سره یو ځای شول. ۲۳-۰۴-۲۰۱۵

**اچین کې په پوسته برید وشو**

د ننګرهار ولایت د اچین ولسوالۍ په عدلخېلوسیمه کې د اربکیانو په پوسته برید ترسره شوچې په مهال یې ۱ اربکی ووژل شو. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**مهمندره کې په پوسته برید، ۳ پولیس ووژل شول**

د ننګرهار ولایت د مهمندرې ولسوالۍ په هزار ناو سیمه کې د پولیسو په پوسته برید وشوچې په ترڅ کې یې ۳ پولیس قتل او ۴ نور ټپيان شول، په نښته کې ۲ مجاهدین سرسرکي ټپيان شول.۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**پچیراګام کې په ۴ پوستو بریدونه وشول**

د ننګرهار ولایت د پچیراګام ولسوالۍ په شاکریانو، لیشکي، بامخېلواو پچیر سیمو کې د دښمن په ۴ پوستو بریدونه وشول، دبریدونوله دښمن ته تلفات واوښتل خو شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**سرخرود کې د دښمن په ټولو مرکزونو بریدونه وشول**

د ننګرهار ولایت په سرخرود ولسوالۍ کې د مومن اباد، حاجي قدیرک او نورو شاوخوا سیمو کې د دښمن په پوستو بریدونه وشول، دبریدونو په مهال د چهار کلا د پوستې ۲ اربکیان ووژل شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**کوټ کې په پوسته برید شوی**

د ننګرهار ولایت د کوټ ولسوالۍ په تریلي سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې له امله یې دښمن ته تلفات ورته واوښتل. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**مهمندره کې په پوسته برید شوی**

د ننګرهار ولایت د مهمندرې ولسوالۍ په ګاړي سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشوچې یکې مېشتو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**غني خېلوکې ۳ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د غني خېلوولسوالۍ په مارکوباراز سیمه کې د دښمن په ګزمه برید وشوچې په ترڅ کې یې ۱ عسکر قتل او ۲ نور ټپيان شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**بټي کوټ کې په پوسته برید، ۱ عسکر ووژل شو**

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ په اړونده سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشوچې ۱ عسکر یکې قتل او ۲ نور ژوبل شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**سرخرود کې په پوسته برید، ۱ پولیس ووژل شو**

د ننګرهار ولایت د سرخرود ولسوالۍ په باولي سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشوچې ۱ پولیس یکې قتل او ۳ نور ژوبل شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**لعلپور کې په ۲ پوستو بریدونه وشول**

د ننګرهار ولایت د لعلپور ولسوالۍ په رزکي او شاهین سیمو کې د دښمن په ۲ پوستو د هاوان او دهشکې برید وشو، په برید کې دښمن ته داوښتو تلفاتو په اړه دقیق معلومات نشته.۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**کوټ کې ۱ مزدور عسکر ونیول شو**

د ننګرهار د کوټ ولسوالۍ په اړونده سیمه کې یو تن مزدور عسکر چې حکمتیار نومېږي د مجاهدینو له لوري ونیول شو. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**چپرهار کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د ننګرهار ولایت د چپرهار ولسوالۍ په ګمبیل سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو او ۲ تنه یکې ټپيان شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**پچیراګام کې ۲ اربکیان قتل شول**

د ننګرهار ولایت د پچیراګام ولسوالۍ په شاکریانو سیمه کې ۲ تنه اربکیان د تالاشي په مهال قتل شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**مهمندره کې په پوسته برید وشو**

د ننګرهار ولایت د مهمندرې ولسوالۍ په ۲۸مه ویاله کې د دښمن په پوسته برید وشوچې له امله یې ۳ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته، په برید کې ۱ مجاهد ټپي شو. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**غني خېلوولسوالۍ په ودانۍ برید وشو**

د ننګرهار ولایت د غني خېلوولسوالۍ په ودانۍ برید وشوچې په ترڅ کې یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې ماین ۴ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ په قیلغو دوسر که سیمه کې د سرحدي پولیسو په ګزمه ماین وچاودېد چې له امله یې ۱ پولیس قتل او ۳ نور ژوبل شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو ولسوالۍ په ودانۍ برید وشو**

د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ په ودانۍ وسلوال برید ترسره شو او ۳ پولیس پکې ټپیان شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**بټي کوټ کې له دښمن سره نښته وشوه**

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ په اړونده سیمه کې له دښمن سره نښته ترسره شوه، په نښته کې دښمن ته د اوښتي مرګ ژوبلې کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**سرخرود کې قومندان شاپور او ۶ اربکیان قتل شول**

د ننګرهار ولایت په سرخرود ولسوالۍ کې د دښمن په عسکرو او پوستو بریدونه ترسره شول، د بریدونو په مهال اربکي قومندان شاپور په شمول ۶ اربکیان قتل او ۷ نور ټپیان شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**شیرزادو ولسوالۍ په ودانۍ برید وشو**

د ننګرهار ولایت د شیرزادو ولسوالۍ په ودانۍ برید ترسره شو، د برید له امله ودانۍ ته په زیان اوښتو سربېره ۳ پولیس ټپیان شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**غني خېلو کې په ۲ پوستو بریدونه وشول**

د ننګرهار ولایت د غني خېلو ولسوالۍ په ۲۸ مه وياله او د غني خېلو بازار ته نژدې په پوسته بریدونه ترسره شول چې له امله یې ودانیو ته په زیان اوښتو سربېره پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**مهمندره کې په پوستو بریدونه ترسره شول**

د ننګرهار ولایت د مهمندرې ولسوالۍ په اړوندو سیمو کې د دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول چې په ترخ کې یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**شیرزادو کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د ننګرهار ولایت د شیرزادو ولسوالۍ ودانۍ ته نژدې د اربکیانو په پوسته برید وشو او ۲ تنه پکې ټپیان شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې په پوسته برید وشو**

د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ په چمتلي سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو چې ۱ پولیس پکې مرګوني ټپي شو. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**اچین ولسوالۍ په ودانۍ او پوسته برید، ۲ پولیس ووژل شول**

د ننګرهار ولایت د اچین ولسوالۍ په ودانۍ او ورته نژدې پوسته برید ترسره شو چې له امله یې ودانیو ته زیانونه واوښتل او په دې سربېره ۱ رېنجر تخریب او ۲ عسکر ووژل شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**پچیراګام کې په پوسته برید، قومندان او ۱ پولیس ووژل شول**

د ننګرهار ولایت د پچیراګام ولسوالۍ د لیشکي په پوسته برید ترسره شو، په برید کې د قومندان عطاالرحمن په شمول ۱ پولیس ووژل شو او ۴ نور ټپیان شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**اچین کې په پوسته برید وشو**

د ننګرهار ولایت د اچین ولسوالۍ په پیخي خوړ کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو. د برید له امله دښمن ته د اوښتي زیان په اړه معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**رودات کې په ۲ پوسته برید، ۲ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د رودات ولسوالۍ په غیبي بابا سیمه کې مجاهدینو د دښمن په پوسته برید وکړ چې له امله یې ودانۍ زیانمنه شوه او پکې مېشتو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. دغه راز په پیوي کنډو سیمه کې په پوسته برید وشو چې ۱ پولیس پکې ووژل شو او ۲ نور ژوبل شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**بهسودو کې ماین ۱ پولیس وواژه**

د ننګرهار ولایت د بهسودو ولسوالۍ په کوچیانو کلي کې په پولیسو چاودنه وشوه چې له امله یې ۱ پولیس ووژل شو. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**شیرزادو کې په پوسته برید، ۱ پولیس ووژل شو**

د ننګرهار ولایت د شیرزادو ولسوالۍ د ودانۍ په دفاعي پوسته برید ترسره شو چې له امله یې ۱ پولیس قتل او ودانۍ هم زیانمنه شوه. ۲۰۱۵-۰۴-۲۴

**رودات ولسوالۍ په ودانۍ برید ترسره شو**

د ننګرهار ولایت د رودات ولسوالۍ په ودانۍ برید ترسره شو چې له امله یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**چپرهار کې پوسته تر بري لاندې راغله**

د ننګرهار ولایت د چپرهار ولسوالۍ په دولت زیو سیمه کې د دښمن پوسته تر برید لاندې راغله، په برید کې ودانۍ وسوزېده او ۳ پولیس پکې ټپیان شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**سپین غر ولسوالۍ په ودانۍ برید وشو**

د ننګرهار ولایت د سپین غر ولسوالۍ په ودانۍ برید ترسره شو چې له امله یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**سپین غر کې په ۲ پوستو برید، ۳ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د سپین غر ولسوالۍ په شدل سیمه کې د دښمن په ۲ پوستو بریدونه ترسره شول چې ۱ پولیس پکې ووژل شو او ۲ نور ټپیان شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**غني خېلو کې په ۲ پوستو بریدونه وشول**

د ننګرهار ولایت د غني خېلوولسوالۍ په مارکو سیمه کې د دښمن په ۲ پوستو بریدونه ترسره شول، د بریدونو له امله دښمن ته د اوښتو تلفاتو په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**پچیراګام کې په پوسته برید وشو**

د ننګرهار ولایت د پچیراګام ولسوالۍ په بامخېلوسیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې له امله یې ۲ پولیس ټپیان شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**د ننګرهار په پچیراګام کې ۲ عسکر مجاهدینو سره یوځای شول**

د ننګرهار ولایت د پچیراګام په ولسوالۍ کې ۲ تنه عسکر (زاهدالله او محمد) له مجاهدینو سره یوځای شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**اچین کې ولسوالۍ په ودانۍ برید وشو**

د ننګرهار ولایت د اچین ولسوالۍ په ودانۍ برید ترسره شو چې له امله یې ودانۍ ته زیان واوښت خو د مرګ ژوبلې شمېره نه ده څرګنده شوې. -۲۰۱۵ ۰۴-۲۴

**خوګیانو کې په پوسته برید ترسره شو**

د ننګرهار ولایت د خوګیانوولسواولۍ په قیوم خېلوسیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې ۱ ساعت یې دوام وکړ او ۲ عسکر پکې ټپیان شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**حصارک ولسوالۍ په ودانۍ او ۳ پوستو بریدونه وشول**

د ننګرهار ولایت د حصارک ولسوالۍ په ودانۍ، د چلګزي، حاجي داودکلا او سرحدي پولیسو په پوستو بریدونه وشول، په بریدونو کې ۳ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته او ودانۍ هم زیانمنې شوې. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**بټي کوټ کې په پوسته برید، قومندان ووژل شو**

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ په سرګردان چوک سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې په ترڅ کې یې قومندان قتل او ۱ پولیس ژوبل شو. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**بټي کوټ کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ په عمرخانه سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې پکې مېشتو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**بټي کوټ کې قومندان او ۱ اربکي ووژل شو**

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ په حافظ کوډي سیمه کې په اربکیانو برید وشو او په ترڅ کې یې اربکی قومندان او ۱ اربکی ووژل شو. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**نازیانو کې په بیس د هاوان برید، ۱ عسکر ووژل شو**

د ننګرهار ولایت د نازیانوولسوالۍ په ژي سر بیس د هاوان برید وشو چې ټولې مرمۍ یې په داخل کې ولګېدلې او په مالي زیان سربېره پکې ۱ عسکر ووژل شو. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**اچین ولسوالۍ په ودانۍ برید وشو**

د ننګرهار ولایت د اچین ولسوالۍ په ودانۍ برید ترسره شو چې له امله یې دښمن ته مالي او ځاني تلفات واوښتل. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**چپرهار ولسوالۍ په ودانۍ او پوسته بریدونه وشول**

د ننګرهار ولایت د چپرهار ولسوالۍ په ودانۍ او د شغلداري په پوسته مجاهدینو وسلوال بریدونه ترسره کړل چې له امله یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۵-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې په پوسته برید وشو**

د ننګرهار ولایت د خوګیانوولسوالۍ په مملي قیوم خېلوسیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو چې ۳ تنه پولیس پکې ټپیان شول. ۲۵-۰۴-۲۰۱۵

**روداټ ولسوالۍ ودانۍ تر برید لاندې راغله**

د ننګرهار ولایت د روداټ ولسوالۍ په ودانۍ برید ترسره شو چې له امله یې ودانۍ ته پوره زیان واوښت او د مرګ ژوبلې شمېره نه ده څرګنده شوې. ۲۵-۰۴-۲۰۱۵

**بهسودو کې په پوسته برید، ۲ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د بهسودوولسوالۍ په ګردي کڅ سیمه کې د پولیسو په پوسته برید وشو چې ۱ پولیس پکې ووژل شو او ۲ نور ټپیان شول.۲۵-۰۴-۲۰۱۵

**بټي کوټ کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ په فارم سی سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو، د برید له امله د اوښتي زیان په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۵-۰۴-۲۰۱۵

**بټي کوټ وکې په رینجر چاودنې ۱ پولیس وواژه**

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ په غازي امان الله خان پارک سیمه کې د پولیسو په رینجر چاودنه وشوه چې پوره یې تخریب کړ او پکې ناست پولیس یې ۱ تن قتل او ۳ ټپیان کړل.۲۵-۰۴-۲۰۱۵

**بتي کوټ کې په پوسته برید وشو**

د ننګرهار ولایت د بتي کوټ ولسوالۍ په حافظ کوډي سیمه کې د د ښمن په پوسته برید ترسره شو، د برید له امله دښمن ته د اوښتي زیان په اړه معلومات نشته. ۲۵-۰۴-۲۰۱۵

**غني خېلوکې ماین د ۲ عسکروژوند واخیست**

د ننګرهار ولایت د غني خېلوولسوالۍ په مارکوبازار سیمه کې په مزدورو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ عسکر ووژل شول. ۲۵-۰۴-۲۰۱۵

**چپرهار کې ماین د ۲ عسکروژوند واخیست**

د ننګرهار ولایت د چپرهار ولسوالۍ په سره کلا سیمه کې په پلیو عسکرو چاونه وشوه او له امله یې ۲ تنه ووژل شول. ۲۵-۰۴-۲۰۱۵

**جلال اباد کې ماین رینجر تخریب او ۲ عسکر ووژل**

د جلال اباد ښار اړوند په قاسم اباد سیمه کې په رینجر چاودنه وشوه چې پوره یې تخریب کړ، چاودني په موټر کې ۲ عسکر ووژل او ۳ یې ټپیان کړل. ۲۶-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې ۳ عسکرووژل شول**

د ننګرهار ولایت د خوګیانوولسوالۍ په کالاخېلو سیمه کې د اربکیانو او مزدوري اردو په ګزمه برید ترسره شوچې په مهال یې ۳ تنه قتل او ۵ نور ټپیان شول . وروسته عسکرو په سیمه کې د هاوانونو ناتار وزي پیل کړې چې ۲ دیومسجد په بام او بله په یو کور ولګېده چې له امله یې په کور کې ۱ ښځه ټپي شوه. ۲۶-۰۴-۲۰۱۵

**سرخرود کې ۵ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د سرخرود ولسوالۍ په خیر اباد سیمه کې مجاهدینو په اربکیانو او پولیسو برید ترسره کړ، په برید کې ۳ تنه قتل او ۲ نور ټپیان شول. ۲۶-۰۴-۲۰۱۵

**چپرهار کې ۴ عسکر مجاهدینو سره یو ځای شوي**

د ننګرهار ولایت په پچیراګام ولسوالۍ کې ۴ تنه عسکر (صداقت، وارث، عنایت الله او دادمحمد) له مجاهدینو سره یوځای شول. ۲۶-۰۴-۲۰۱۵

**رودات کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د ننګرهار ولایت د رودات ولسوالۍ په پیوي کنډو سیمه کې د پولیسو په پوسته برید ترسره شوچې له امله یې ۲ پولیس ټپیان شول او ودانۍ هم زیانمنه شوه. ۲۷-۰۴-۲۰۱۵

**پچیراګام کې عسکر مجاهدینو سره یو ځای شو**

د ننګرهار ولایت په پچیراګام ولسوالۍ کې د اردو ۱ عسکر ( فضل الرحمن) له مجاهدینو سره یوځای شو. ۲۷-۰۴-۲۰۱۵

**سپین غر کې ۳ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د سپین غر ولسوالۍ په میدانک سیمه کې په پولیسو برید ترسره شوچې ۴ تنو ته پکې مرګ ژوبله واوښته او وروسته له سیمې وتښتېدل. ۲۷-۰۴-۲۰۱۵

**نازیانو کې اربکی ووژل شو**

د ننګرهار ولایت د نازیانوولسوالۍ په لنډي سیمه کې مجاهدینو په اربکیانو بریدوکړ چې ۱ تن پکې قتل او بل سخت ټپي شو. ۲۷-۰۴-۲۰۱۵

**بتي کوټ کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د ننګرهار ولایت د بتي کوټ ولسوالۍ په اړونده سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو، د برید له امله دښمن ته د اوښتي زیان په اړه معلومات نشته. ۲۸-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې ۲ عسکروژل شوي**

د ننګرهار ولایت د وزیرو په احمدخېلو سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو برید وشوچې ۲ تنه پکې ووژل شول. ۲۸-۰۴-۲۰۱۵

**چاودنې د بتي کوټ ولسوالۍ ولسوال او ۴ عسکر ټپیان کړل**

د ننګرهار ولایت د بتي کوټ ولسوالۍ د ولسوالۍ حاجي غالب په موټر په باریکاب سیمه کې درنه چاودنه وشوه، د چاودنې له امله موټر تخریب شواو د ولسوال په شمول ۴ تنه پولیس مرګوني ټپیان شول. ۲۸-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې ۲ عسکر مجاهدینو سره یو ځای شول**

د ننګرهار ولایت په خوګیانوولسوالۍ کې ۲ تنه پولیس هر یو شفیق الله او دین محمدله مجاهدینو سره یوځای شول. ۲۸-۰۴-۲۰۱۵

**خوګیانو کې ۳ عسکر مجاهدینو سره یو ځای شوي**

د ننګرهار ولایت په خوګیانوولسوالۍ کې ۳ تنه عسکر (عبدالرحمن، نورالله او ریاض) له مجاهدینو سره یوځای شول. ۲۹-۰۴-۲۰۱۵

**چپرهار کې چاودنو ۲ رینجر تخریب او ۴ عسکر ووژل**

د ننګرهار ولایت د چپرهار ولسوالۍ په سره کلا سیمه کې د دښمن په رینجر موټر چاودنه وشوه چې له امله یې رینجر پوره تخریب شو او پکې ناست عسکر ۴ تنه قتل او ۳ نور ټپیان شول، دوهمه چاودنه په غوراباد سیمه کې په هغو پولیسو وشوه چې سیمې ته راروان وو، دغې چاودنې د رینجر په تخریبیدو سربېره ۳ تنه پولیس ټپیان کړل. ۲۹-۰۴-۲۰۱۵

**حصارک کې په ۲ پوستو بریدونه وشول**

د ننګرهار ولایت د حصارک ولسوالۍ په حاجي داود کلا او چلګزي سیمو کې د دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول، د بریدونو له امله دښمن ته د اوښتو تلفاتو په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۹-۰۴-۲۰۱۵

**نازیانو کې په پولیسو برید وشو**

د ننګرهار ولایت د نازیانو ولسوالۍ په ترخو سیمه کې مجاهدینو په پولیسو برید ترسره کړ چې په ترڅ کې یې ۱ پولیس ټپي شو او نور وتښتېدل. ۲۰۱۵-۰۴-۳۰

**کوټ کې مجاهدینو یو سړی له اختطاف کونکو خلاص کړ**

د ننګرهار ولایت په کوټ ولسوالۍ کې یو کلیوال چې قاري میرالرحمن نومیږي د سړي تښتونکو له لوري وتښتول شو، له پښې وروسته مجاهدین د غلو په لټه شول او بالاخره یادکس یې له غلو خلاص کړ او غله وتښتېدل. ۲۰۱۵-۰۴-۳۰

**خوګیانو کې له دښمن سره نښته شوې**

د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ په کوزبهار سیمه کې د دښمن له عملیاتي عسکرو سره نښته وکړه، په نښته کې ۳ تنه عسکر شدید ټپیان شول او نور له سیمې بیرته په شا وتښتېدل. ۲۰۱۵-۰۴-۳۰

**پچیراګام کې پولیس مجاهدینو سره یوځای شو**

د ننګرهار ولایت د پچیراګام ولسوالۍ په لنده خېلو سیمه کې یو تن پولیس (جمیل) له ګوډاګي اداري راجلا او له مجاهدینو سره یوځای شو. ۲۰۱۵-۰۴-۳۰

**خوګیانو کې ۳ عسکر مجاهدینو سره یوځای شول**

د ننګرهار ولایت په خوګیانو ولسوالۍ کې ۳ تنه عسکر (نقیب الله، ضابط خان او احسان الله) د جلب او جذب کمیسیون د دعوت او سیمه ییزو مجاهدینو په هڅو د اسلامي امارت په حقانیت پوه او له ګوډاګي اداري راجلا شول. ۲۰۱۵-۰۴-۳۰

## کونړ

**ناړۍ کې په پوسته برید وشو**

د کونړ ولایت د ناړۍ ولسوالۍ په محمدزیرقلعه کې د اربکیانو او سرحدي پولیسو په ګډه پوسته بریدوشو، په برید کې ۱ پولیس ټپي شو او ودانۍ هم زیانمنه شوه. ۲۰۱۵-۰۴-۰۱

**سرکانو کې په ۲ پوستو بریدونه وشول**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په قلاسر او خنجر پوسته کې د دښمن په ۲ پوستو بریدونه وشول، د بریدونو له امله ودانیو ته په زیان اوښتو سربېره ۱ عسکر ټپي شو. ۲۰۱۵-۰۴-۰۱

**سرکانو کې ماین ۴ پولیسو ته مرګ ژوبله واړوله**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په سروضه سیمه کې په پولیسو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ پولیس قتل او ۲ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵-۰۴-۰۲

**ناړۍ کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د کونړ ولایت د ناړۍ ولسوالۍ په سور سر سیمه کې د مزدوري اردو پوسته د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، په برید کې دښمن ته د اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۲۰۱۵-۰۴-۰۲

**خاص په پوسته برید، ۱۳ عسکر ټپیان شول**

د کونړ ولایت د خاص کونړ ولسوالۍ په ولي سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په پوسته برید ترسره شو، د برید له امله ۱۳ عسکر مرګوني ټپیان شول او ودانۍ هم زیانمنه شوه. ۲۰۱۵-۰۴-۰۴

**سرکانو کې ۱ رینجر تخریب او ۱ عسکر ووژل شو**

د کونړ ولایت په سرکانو ولسوالۍ کې مېنوکنډو ته نژدې د دښمن رینجر موټر تر برید لاندې راغی، په برید کې د رینجر په تخریبېدو سربېره ۱ عسکر قتل او بل ژوبل شو. ۲۰۱۵-۰۴-۰۵

**اسمار کې په پوسته برید وشو**

د کونړ ولایت د اسمار ولسوالۍ په اړونده سیمه کې د پل په پوسته برید ترسره شو، د برید له امله دښمن ته د اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۲۰۱۵-۰۴-۰۶

**ناړۍ کې ضابط د ټپونو له امله مړ شو**

د کونړ ولایت د ناړۍ ولسوالۍ په دوکلا سیمه کې د پولیسو ضابط حمیدالله چې د ماین په چاودنه کې ټپي شوی وو، د ژورو ټپونو له امله ساه ورکړه. ۲۰۱۵-۰۴-۰۶

**سرکانو کې ۳ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په ناوه سیمه کې د سرحدي پولیسو په هغه کاروان برید ترسره شو چې نوا پاس پوستو ته روان وو، په نښته کې ۱ عسکر قتل او ۲ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵-۰۴-۰۶

**ناړۍ کې په بیس برید وشو**

د کونړ ولایت د ناړۍ ولسوالۍ په کامتلي سیمه کې د مزدوري اردو په بیس د دهشکې بریدوشو چې له امله یې ۱ عسکر مرګوني ټپي شو. ۲۰۱۵-۰۴-۰۷

**خاص په پوسته برید وشو**

د کونړ ولایت د خاص کونړ ولسوالۍ په شامکار سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې په ترڅ کې یې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵-۰۴-۰۷

**ناړۍ کې بیس په دهشکه وویشتل شو**

د کونړ ولایت د ناړۍ ولسوالۍ د کامتلي په بیس د دهشکې برید وشو چې له امله یې ۱ عسکر سخت ژوبل شو، وروسته عسکرو په سیمه کې د هاوانونو ډزې وکړې چې یوه مرمۍ یې په یو کور ولګېده او له امله یې ۱ کلیوال په شهادت ورسېد. ۰۸-۰۴-۲۰۱۵

**مانوګي کې په پوسته برید وشو**

د کونړ ولایت د مانوګي ولسوالۍ په ګنډګل سیمه کې د مزدوري اردو په پوسته برید وشو چې په مهال یې دښمن ته زیان واوښت. ۰۸-۰۴-۲۰۱۵

**څوکۍ کې ماین ۵ عسکرو ته مرګ ژوبله واړوله**

د کونړ ولایت د څوکۍ ولسوالۍ په اړونده سیمه کې په رېنجر موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رېنجر تخریب، ۲ عسکر مړه او ۳ ټپیان شول. ۰۸-۰۴-۲۰۱۵

**ناړۍ کې په پوستو بریدونه وشول**

د کونړ ولایت د ناړۍ ولسوالۍ په شامله ګل او غاړي کنډو سیمو کې د دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې دښمن ته د اوښتي زیان په هکله شواهد نه دي تر لاسه شوي. ۰۹-۰۴-۲۰۱۵

**ناړۍ کې په پوسته برید وشو**

د کونړ ولایت د ناړۍ ولسوالۍ په نانګل سیمه کې د دښمن پوسته د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، په برید کې دښمن ته د اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۱۰-۰۴-۲۰۱۵

**ناړۍ کې په پوستو بریدونه وشول**

د کونړ ولایت د ناړۍ ولسوالۍ په شیرګل سیمه کې د دښمن په پوستو بریدونه وشول چې له امله یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۱۱-۰۴-۲۰۱۵

**دانګام کې په کنډک برید ۵ عسکر ووژل شول**

د کونړ ولایت د دانګام ولسوالۍ په صیام سیمه کې د مزدوري اردو په کنډک وسلوال برید ترسره شو، د برید له امله ودانۍ ته په زیان اوښتو سربېره ۵ عسکر ووژل شول. ۱۳-۰۴-۲۰۱۵

**نورګل کې د مزدوري اردو رېنجر په ماین والوت**

د کونړ ولایت د نورګل ولسوالۍ په پنشیرنو سیمه کې د مزدوري اردو رېنجر موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر پوره تخریب شو او عسکرو ته پکې مرګ ژوبله واوښته. ۱۳-۰۴-۲۰۱۵

**نورګل کې په رېنجر ماین وچاودېد**

د کونړ ولایت د نورګل ولسوالۍ په پتنک سیمه کې د کنډک په رېنجرو وسلوال برید ترسره شو، د برید په مهال ۱ رېنجر تخریب شو او عسکرو ته پکې مرګ ژوبله واوښته. ۱۳-۰۴-۲۰۱۵

**خاص کونړ کې په بیس د هاوان برید زیان واړواوه**

د کونړ ولایت د خاص کونړ ولسوالۍ په شالي سیمه کې د دښمن بیس د هاوان په ۶ مرمیو دقیق وویشتل شو چې له امله یې ۲ د هستوګنې اوطاقونه او ۱ رېنجر موټر ویجاړ شول. ۱۵-۰۴-۲۰۱۵

**وټه پور کې په پوسته برید وشو**

د کونړ ولایت د وټه پور ولسوالۍ په پیروني سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې په ترڅ کې یې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۱۶-۰۴-۲۰۱۵

**سرکانو کې د نښتي په مهال ۲ موټر تخریب او ۸ عسکر ووژل شول**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په ناوکي، ترسد او ناوې سیمو کې د دښمن له هغو عسکرو سره خونړۍ نښته وشوه چې غوښتل یې خپل هغه عسکر چې له ۲۸ ورځو راهیسې محاصره دي وباسي، د نښتي په جریان کې ۸ تنه عسکر ووژل شول او ۲ نور ټپیان شول، په دې سربېره ۲ رېنجر موټر وویشتل شول او پوره تخریب شول، په جګړه کې ۲ مجاهدین سرسري ټپیان شول. ۱۷-۰۴-۲۰۱۵

**وټه پور کې په ۲ پوستو بریدونه وشول**

دکونړ ولایت د وټه پور ولسوالۍ په ملکانه او پیروني سیمو کې د دښمن په ۲ پوستو بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې ودانیو ته زیان واوښت خو د مرګ ژوبلې کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۱۸-۰۴-۲۰۱۵

**ناړۍ کې په پوستو بریدونه وشول**

د کونړ ولایت په ناړۍ ولسوالۍ کې د دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول چې دښمن ته پکې درانه تلفات واوښتل. ۱۸-۰۴-۲۰۱۵

**سرکانو کې په پوستو بریدونه ترسره شول**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په ترسد او ناوې ته په غزېدلي لاره د دښمن په پوستو بریدونه وشول، په بریدونو کې دښمن ته د اوښتو تلفاتو په هکله دقیق معلومات نشته. ۱۸-۰۴-۲۰۱۵

**سرکانو کې ۸ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ**

د کونړ ولایت په سرکانو ولسوالۍ کې له هغو عسکرو سره جګړه وشوه چې د داود تاڼې له طرفه یې د لارې خلاصولو هڅه وکړه، په جګړه کې د دښمن ۸ عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړی او ګڼ نور ټپیان شول. ۱۹-۰۴-۲۰۱۵

**کونړ مرکز ته نژدې په پوسته برید وشو**

د کونړ ولایت مرکز اسعداباد ته نژدې د توپچي غونډ په دفاعي پوسته برید وشو، په برید کې دښمن ته د اوښتي زیان په اړه معلومات نشته. ۱۹-۰۴-۲۰۱۵

**وټه پور کې په پوسته برید، ۱ عسکر ووژل شو**

د کونړ ولایت دوټه پور ولسوالۍ په لاچۍ سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو، په برید کې ۱ عسکر ووژل شوا او ودانۍ ته هم زیان واوښت. ۲۲-۰۴-۲۰۱۵

**مروره کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د کونړ ولایت د مروري ولسوالۍ په بټي سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې له امله یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۲-۰۴-۲۰۱۵

**سرکانو کې ۲ رینجر ویجاړ شول**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په نوا پاس سیمه کې د دښمن په ګزمه بریدونه وشول، په برید کې ۲ رینجر تخریب شول او عسکرو ته د اوښتي مرګ ژوبلې کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۲۲-۰۴-۲۰۱۵

**وټه پور کې په بیس برید وشو**

د کونړ ولایت د وټه پور ولسوالۍ په مناګي سیمه کې د دښمن بیس د مجاهدینو تر برید لاندې راغی، د برید له امله دښمن ته د اوښتو تلفاتو په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۲-۰۴-۲۰۱۵

**نورګل کې په ګزمه او پوسته بریدونه وشول**

د کونړ ولایت د نورګل ولسوالۍ په پنشیر نو سیمه کې د سرحدي پولیسو په ګزمه برید وشو چې په ترڅ کې یې پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته، دغه راز د یادې ولسوالۍ په پتنک سیمه کې هم په پوسته برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته د اوښتي زیان په هکله دقیق معلومات نشته. ۲۲-۰۴-۲۰۱۵

**مروره کې په پوسته برید وشو**

د کونړ ولایت د مروري ولسوالۍ په دړېدم سیمه کې د دښمن پوسته د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، په برید کې دښمن ته د اوښتي زیان په اړه معلومات نشته. ۲۳-۰۴-۲۰۱۵

**د سرکانو ولسوالۍ د ولسوال په موټرو برید وشو**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په برباد سیمه کې د دغې ولسوالۍ د ولسوال په موټرو وسلوال برید ترسره شو، په برید کې د ولسوال ۲ محافظین مرګوني ټپیان شول. ۲۳-۰۴-۲۰۱۵

**خاص کونړ کې په پوسته برید وشو**

د کونړ ولایت د خاص کونړ ولایت په شامکار سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو، د برید له امله ۲ عسکر ټپیان شول او د پوستې ودانۍ زیانمنه شوه. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**ناړۍ ولسوالۍ په ودانۍ او شاوخوا پوستو بریدونه وشول**

د ننګرهار ولایت د ناړۍ ولسوالۍ په ودانۍ، شیرګل، کانتیلي، ساوېل او زنګرو مکتب ته نژدې په پوستو بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته خو شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**څوکۍ کې په پوسته برید شوی**

د کونړ ولایت د څوکۍ ولسوالۍ په ترناب، پولچکو او په پټن سیمو کې د دښمن په ۳ پوستو بریدونه وشول چې پکې مېشتو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**دانګام کې په پوسته برید، ۳ عسکر ووژل شوي**

د کونړ ولایت د دانګام ولسوالۍ په غندکو سیمه کې په پوسته برید وشو، د برید په ترڅ کې ۳ عسکر ووژل شول او ودانۍ ته هم زیان واوښت. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**خاص کونړ کې ۱ رینجر تخریب او ۴ عسکر ووژل شول**

د کونړ ولایت د خاص کونړ ولسوالۍ په شالي شرکت سیمه کې د دښمن په ګزمه برید وشو چې په مهال یې ۱ رینجر تخریب او ۴ عسکر ووژل شول، په نښته کې ۲ مجاهدین شهیدان شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**کونړ مرکز ته نژدې د دښمن په مرکزونو برید، ۱ عسکر ووژل شو**

د کونړ ولایت مرکز اسعداباد ته نژدې په پوستو او نظامي تاسیساتو بریدونه ترسره شول چې له امله یې ودانیو ته په زیان اوښتو سربېره ۱ عسکر قتل او بل ټپي شو. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**کونړ مرکز کې په کنډک برید وشو**

د کونړ ولایت مرکز اسعداباد ته نژدې د دښمن په کنډک برید وشو، په برید کې دښمن ته د اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**په سرحدي کنډک او پوسته بریدونه وشول**

د کونړ ولایت مرکز ته نژدې د سرحدي پولیسو په کنډک او ورته نژدې پوسته بریدونه وشول، په بریدونو کې دښمن ته د اوښتو تلفاتو په هکله دقیق معلومات نشته. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**نورګل ولسوالۍ په مرکز او ۲ پوستو بریدونه وشول**

د کونړ ولایت د نورګل ولسوالۍ په ودانۍ، د زېړي بابا، کنډک او د پولیسو د تالاشي په پوستو بریدونه ترسره شول، د بریدونو له امله دښمن ته د اوښتي زیان په اړه معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**مروره کې په پوسته برید وشو**

د کونړ ولایت د مروري ولسوالۍ په دریدم سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو چې له امله یې په پوسته کې مېشتو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**اسمار ولسوالۍ په ودانۍ، بیس او ۳ پوستو برید وشو**

د کونړ ولایت د اسمار ولسوالۍ په ودانۍ، د مزدوري اردو په بیس، شالدبه، شال او زیارت په پوستو بریدونه ترسره شول، د بریدونو له امله ودانیو ته زیانونه واوښتل او د مرګ ژوبلې شمېره نه ده څرګنده شوې. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**سرکانو کې په ۲ غونډونو برید، ۱ رینجر تخریب او ۲۰ عسکر ووژل شول**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په اړوندو سیمو کې د مزدوري اردو او سرحدیانو په غونډونو بریدونه ترسره شول، د معلوماتو په اساس د مزدوري اردو په غونډ کې ۱۰ او د سرحدیانو په غونډ کې ۶ تنه عسکر ووژل شول، له دې علاوه په کومکي عسکرو هم برید ترسره شو چې ۱ رینجر تخریب او ۴ عسکر پکې ووژل شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**دانګام ولسوالۍ په مرکز او دفاعي پوستو بریدونه وشول**

د کونړ ولایت د د دانګام ولسوالۍ په مرکز او دفاعي پوستو بریدونه وشول، په بریدونو کې ودانیو ته په زیان اوښتو سربېره ۱ عسکر قتل او ۲ نور ټپیان شول. ۲۵-۰۴-۲۰۱۵

**کونړ مرکز ته څېرمه په پوستو بریدونه ترسره شول**

د کونړ ولایت د مرکز اسعداباد اړوند سیمه کې د دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول چې له امله یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۵-۰۴-۲۰۱۵

**نورګل کې ۳ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ**

د کونړ ولایت د نورګل ولسوالۍ په پنشیر نو سیمه کې د مزدوري اردو په عسکرو برید ترسره شو چې ۳ تنو پکې ژوند له لاسه ورکړ او ۲ نور ژوبل شول، د دښمن په ناتار ډزو کې ۲ کلیوال شهیدان شول. ۲۶-۰۴-۲۰۱۵

**سرکانو کې په پوستو برید، ۳ عسکر ووژل شول**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په نواپاس او پشد سیمو کې د دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول چې له امله یې ودانیو ته په زیان اوښتو سربېره ۲ عسکر، ۱ اربکی قتل او بل ټپي شو. ۲۶-۰۴-۲۰۱۵

**نرنګ کې په پوستو برید، ۲ عسکر ووژل شول**

د کونړ ولایت د نرنګ ولسوالۍ په اړوندو سیمو کې د دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول، د بریدونو له امله ودانیو ته په زیان اوښتو سربېره ۲ عسکر قتل او بل ټپي شو. ۲۷-۰۴-۲۰۱۵

**نورګل کې ۳ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

د کونړ ولایت د نورګل ولسوالۍ په اړونده سیمه کې مجاهدینو د چپه درې ولسوالۍ د ولسوالۍ په موټر برید ترسره کړ، په برید کې ۲ عسکر قتل او بل ټپي شو. ۲۷-۰۴-۲۰۱۵

**ناړۍ کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د کونړ ولایت د ناړۍ ولسوالۍ په انجکل سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو چې پکې مېشتو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۷-۰۴-۲۰۱۵

**سرکانو کې په ۲ پوستو برید، ۲ عسکر ووژل شول**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په ناوه سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو، په برید کې ۲ عسکر ووژل شول او ۵ نور ټپیان شول، دغه راز په براباد سیمه کې هم د مزدوري اردو په پوسته برید وشو چې ۱ تن پکې قتل او ۲ نور ژوبل شول. ۲۸-۰۴-۲۰۱۵

**نرنګ کې بیس تر برید لاندې راغی**

د کونړ ولایت د نرنګ ولسوالۍ په غونډۍ سیمه کې د دښمن په بیس برید ترسره شو چې پکې مېشتو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۸-۰۴-۲۰۱۵

**مانوګي ولسوالۍ په ودانۍ او دفاعي پوستو بریدونه وشول**

د کونړ ولایت د مانوګي ولسوالۍ په ودانۍ او شاوخوا دفاعي پوسته بریدونه وشول، په بریدونو کې دښمن ته د اوښتي زیان په اړه معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۸-۰۴-۲۰۱۵

**نورګل کې په پوستو بریدونه، ۵ عسکر ووژل شول**

د کونړ ولایت د نورګل ولسوالۍ په پنشیر نو او فتنک سیمو کې د دښمن په پوسته بریدونه وشول چې له امله یې ۵ عسکر قتل او ۱ ټپي شو، په دې سربېره ۱ زغروال ټانګ هم تخریب شو. ۲۹-۰۴-۲۰۱۵

**څوکۍ کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د کونړ ولایت د څوکۍ ولسوالۍ په پتې سیمه کې د دښمن پوسته د مجاهدینو تر برید لاندې راغله چې پکې میشتو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۹-۰۴-۲۰۱۵

**سرکانو کې په پوستو بریدونه وشول**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په ناوه او نواپاس سیمو کې د دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول چې له امله یې ودانیو ته په زیان اوښتو سربېره ۱ رینجر موټر هم تخریب شو او ۴ تنه عسکر پکې ووژل شول. ۲۹-۰۴-۲۰۱۵

**مروره کې ۲ پوستې تر برید لاندې راغلې**

د کونړ ولایت د مروري ولسوالۍ د دړیدم او موریکام په پوستو وسلوال برید ترسره شول، په بریدونو کې دښمن ته د اوښتي زیان په اړه دق معلومات نشته. ۲۰۱۵-۰۴-۳۰

# لغمان

**قرغیو ولسوالۍ په امنیه قومنداني برید وشو**

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په امنیه قومنداني وسلوال برید ترسره شوچې په مهال یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۰۱۵-۰۴-۰۱

**علینګار کې ماین د ۲ عسکرو ژوند واخیست**

د لغمان ولایت د علینګار ولسوالۍ په قصبه خوړ کې په ګوډاګیو عسکرو درنه چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ عسکر ځای په ځای ووژل شول.۲۰۱۵-۰۴-۰۱

**علینګار کې ۱ عسکر ژوند له لاسه ورکړ**

د لغمان ولایت د علینګار ولسوالۍ په وطن ګټو سیمه کې د دښمن په پوځي کتار برید ترسره شو، په برید کې ۱ عسکر قتل او بل ټپي شو. ۲۰۱۵-۰۴-۰۲

**دولت شاه کې عسکر په درازکوف وویشتل شو**

د لغمان ولایت په دولت شاه ولسوالۍ کې ۱ عسکر په درازکوف وویشتل شو چې سخت ژوبل شو. ۲۰۱۵-۰۴-۰۶

**لغمان مرکز ته نژدې ۳ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ**

د لغمان ولایت مرکز مهترلام ته نژدې په سیدکلا کې په ګوډاګیو عسکرو برید ترسره شوچې په مهال یې ۳ عسکر قتل او بل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۵-۰۴-۰۶

**علیشنګ کې په عسکرو برید وشو**

د لغمان ولایت د علیشنګ ولسوالۍ په قلعه نجیل میل دره کې د مزدوروي اردو په عسکرو برید وشو، په برید کې ۱ عسکر ټپي شو او نور بیس ته وتښتېدل. ۲۰۱۵-۰۴-۰۶

**علینګار کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د لغمان ولایت د علینګار ولسوالۍ په قلعه ګکه سیمه کې د دښمن پوسته د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، په برید کې دښمن ته د اوښتي زیان په اړه شواهد نه دي تر لاسه شوي. ۲۰۱۵-۰۴-۰۷

**بادپخ کې ۲ عسکر ووژل شول**

د لغمان ولایت د بادپخ ولسوالۍ په سمسو سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشوچې په مهال یې ۲ عسکر قتل او ۱ سخت ژوبل شو. ۲۰۱۵-۰۴-۰۸

**دولت شاه کې په پوسته برید، ۱ عسکر ووژل شو**

د لغمان ولایت د دولت شاه ولسوالۍ په زرکمر سیمه کې د دښمن پوسته چې د سبزخان په پوسته یادیږي، د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، په برید کې ۱ ګوډاګی عسکر ووژل شو او ۳ نور ټپیان شول. ۲۰۱۵-۰۴-۰۹

**علیشنګ کې په ګوډاګیو عسکرو برید وشو**

د لغمان ولایت د علیشنګ ولسوالۍ په جبون ډاګ سیمه کې د دښمن په ګزمه برید وشوچې په ترڅ کې یې ۱ عسکر مرګوني ټپي شو. ۲۰۱۵-۰۴-۰۹

**بادپخ کې ماین د ۲ عسکرو ژوند واخیست**

د لغمان ولایت د بادپخ ولسوالۍ په توده چینه سیمه کې په پلیو عسکرو د ماین چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ تنه عسکر مړه او ۱ عسکر ټپي شو. ۲۰۱۵-۰۴-۱۰

**د بادپخ په دفاعي پوسته برید وشو**

د لغمان ولایت د بادپخ ولسوالۍ په کوترخانه سیمه کې دفاعي پوسته د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، د برید له امله دښمن ته د اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته.۲۰۱۵-۰۴-۱۱

**لغمان مرکز ته څېرمه چاودنې ۶ عسکرو ته مرګ ژوبله واړوله**

د لغمان ولایت مرکز مهترلام چلمتې سیمه کې د محبس دروازې ته نژدې د مزدوري اردو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې د موټر په تخریبېدو سربېره ۳ عسکر ووژل شول او ۲ نور ټپیان شول، دغه راز په بسرام سیمه کې هم په ګوډاګیو عسکرو چاودنه وشوه چې ۱ عسکر پکې مرګوني ټپي شو. ۲۰۱۵-۰۴-۱۳

**قرغیو کې نفوذي مجاهد ۱۱ امریکایي عسکر ووژل**

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ د ګمبیري ډاګ په بیس کې د اسلامي امارت یو تن نفوذي مجاهد(عبدالیار) په هغو یرغلګرو عسکرو برید وکړ چې په یو ځای کې راغونډ شوي وو،یاد مجاهد ۱۱ عسکر ووژل، ۲ تنه نور عسکر یې مرګوني ژوبل کړل او وروسته له نورو عسکرو سره له ډېر مقاومت وروسته په شهادت ورسېد، انا لله وانا الیه راجعون. ۲۰۱۵-۰۴-۱۳

**علینګار کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د لغمان ولایت د علینګار ولسوالۍ په کنه ګل سیمه کې د دښمن پوسته تر برید لاندې راغله چې په مهال یې ۲ عسکر ټپیان شول. ۲۰۱۵-۰۴-۱۳

**علینګار کې کاروان تر برید لاندې راغی**

د لغمان ولایت د علینګار ولسوالۍ په لوکاټ سیمه کې د دښمن په پوځي کاروان برید وشو، په برید کې ۲ عسکر ټپیان او ۱ کانټینر تخریب شو. ۱۴-۰۴-۲۰۱۵

**لغمان مرکز ته نژدې ګوډاګی عسکر ووژل شو**

د لغمان ولایت مرکز مهترلام ته نژدې په بسرام سیمه کې د غلچکي برید په مهال یو تن ګوډاګی عسکر ووژل شو. ۱۵-۰۴-۲۰۱۵

**لغمان مرکز ته نژدې چاودنې اربکی قومندان ټپي کړ**

د لغمان ولایت مرکز مهترلام ته نژدې په ابزۍ کچور سیمه کې په اربکیان چاودنه وشوه چې له امله یې اربکی قومندان مرګوني ټپي شو. ۲۰۱۵-۰۴-۱۵

**بادپخ کې په پوسته برید وشو**

د لغمان ولایت د بادپخ ولسوالۍ په اندیخي سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو او دښمن ته پکې مرګ ژوبله واوښته. ۱۵-۰۴-۲۰۱۵

**دولت شاه کې ۱ پولیس ووژل شو**

د لغمان ولایت د دولت شاه ولسوالۍ په کواکړو سیمه کې په مزدورو عسکرو برید ترسره شو، په برید کې ۱ عسکر ووژل شو او بل سخت ژوبل شو. ۱۸-۰۴-۲۰۱۵

**علینګار کې ماین ۲ عسکر ژوبل کړل**

د لغمان ولایت د علینګار ولسوالۍ مرکز ته نژدې د پوستې په پولیسو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ پولیس ژوبل شول. ۱۹-۰۴-۲۰۱۵

**ماین موټر تخریب او ۳ پولیس ژوبل کړل**

د لغمان ولایت په مهترلام کې د پولیسو په تیوډي موټر د چسپکي ماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټر تخریب او ۳ پولیس پکې ژوبل شول. ۲۰-۰۴-۲۰۱۵

**قرغیو کې له دښمن سره نښته وشوه**

دلغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په ګدایي خېلوسیمه کې د دښمن له عسکرو سره نښته ترسره شوه، د نښتي په پای کې عسکر د تلفاتو په لیدلو سره له سیمې وتښتېدل. ۲۱-۰۴-۲۰۱۵

**قرغیو کې د دښمن په ستر بیس برید وشو**

د لغمان ولایت په ګمبیري ډاګ سیمه کې د خارجي عسکرو په ستر بیس چې په سیلاب قول اردو یادېږي، د توغندیو برید وشو، د برید له امله دښمن ته د اوښتي زیان په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵-۰۴-۲۴

**علیشنګ کې په پوسته برید وشو**

د لغمان ولایت د علیشنګ ولسوالۍ په جبون ډاګ کې د دښمن پوسته د هشتاددو په ۴ مرمیو دقیق وویشتل شوه چې له امله یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**دولت شاه کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د لغمان ولایت د دولت شاه ولسوالۍ په کنداکوري سیمه کې د دښمن په پوسته راکټي برید وشو چې په مهال یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۰۱۵-۰۴-۲۴

**لغمان مرکز ته نژدې په پوسته برید وشو**

د لغمان ولایت مرکز مهترلام ته نژدې پلوټه سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې پکې میشتو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**بادپخ ولسوالۍ په ودانۍ راکټي برید وشو**

د لغمان ولایت د بادپخ ولسوالۍ په ودانۍ راکټي بري ترسره شو، په برید کې دښمن ته د اوښتي زیان په اړه معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵-۰۴-۲۴

**علیشنګ کې په پوستو برید، ۲ عسکر ووژل شول**

د لغمان ولایت د علیشنګ ولسوالۍ په میاصاحب سیمه کې د دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول چې له امله یې ۲ عسکر قتل او بل ژوبل شو، په دې سربېره ودانۍ هم زیانمنې شوې. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**علینګار کې په بیس توغندي وار شول**

د لغمان ولایت د علینګار ولسوالۍ په بره خان بابا سیمه کې د دښمن په بیس توغندویي برید وشو چې له امله یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۰۱۵-۰۴-۲۴

**لغمان مرکز ته نژدې ماین اربکی قومندان او ۳ اربکیان ووژل**

د لغمان ولایت مرکز مهترلام ته نژدې په باباصاحب ډاګ کې د اربکیانو په کرولا موټر چاودنه وشوه چې له امله یې د موټر په تخریبېدو سربېره قومندان نعمت او ۳ اربکیان ووژل شول. ۲۴-۰۴-۲۰۱۵

**علیشنګ کې په پوسته برید، ۱ عسکر ووژل شو**

د لغمان ولایت د علیشنګ ولسوالۍ په قلعه نجیل سیمه کې د بیس په دفاعي پوسته برید وشو چې په مهال یې ۱ عسکر قتل او ۲ ټپیان شول. ۲۰۱۵-۰۴-۲۴

**لغمان کې د دښمن په عسکرو برید وشو**

